# آیا نجیب پېژنئ؟

دغه عنوان د هغه وړوکي کتاب دی چې د ډاکتر نجیب الله سکه ورور صدیق الله راهي هغه وخت لیکلی چې ډاکتر نجیب ژوندی و، په هغه وخت کې نه ډاکتر نجیب او نه يې کوم خواخوږي او ملګري ددغه کتاب په اړه څه ویلي. او دا ممکنه نه ده چې نوموړی چې شیږ اوه کاله داستخباراتو رئیس پاتې شوی و ددغه کتاب په اړه معلومات نه وي لرلي.

په هر صورت نوموړی کتاب چې په نېټ کې د ګوتو په لیکنه په پي ډي اف فایل کې نشر شوې، هغه نوادر او حیرانوونکي حقایق پکې نغښتي دي چې بالکل سړی حیرانوي. ما خپله تر ننه پورې دا ګومان نه کولو چې ډاکتر نجیب به دومره بې حیثیته، بې عزته او سپک انسان وي. ما ویل که نور نه وي کم تر کمه انسان خو و. خو د صدیق الله راهي لیکلي حقایق څرګندوي چې ډاکتر نجیب نه یوازې د اسلامیت او افغانیت اصول تر پښو لاندې کړې وو، بلکې د انسانیت پر مخ يې هم مرګوني ګوزارونه کړي. په دې اړه زه نور څه نه وایم، ښه دا ده چې خپله د صدیق الله راهي لیکنه ولوستل شي او قضاوت لوستونکو ته پرېښودل شي، ددې لپاره چې لوستونکي په ځانګړې ډول پښتانه ورونه د نجیب له حقیقت نه خبر شي زه نوموړې لیکنه په پښتو ژبه ژباړم، د یادونې وړ ده چې په نوموړې لیکنه کې د ډاکتر نجیب دکړو وړو په اړه ځینې داسې الفاظ راغلي او کارول شي چې له اخلاقي او ادبي لحاظه له ګوتو او قلم سره نه ښايي، دا چې ورور يې په دې نیت چې حقایق سم او په بشپړ ډول وښيي، لیکلي دي، د هغه کار دی، ځکه خو زه تر خپله وسه هڅه کوم چې دا ډول توري و نه کارول شي، او مفهوم په نورو ټکو وړاندې کړل شي. خو بیا هم که يې ځای او حالاتو غوښتنه کوله، له اړتیا پرته به يې له کارولو ډه ډه کېږي. ان شاء الله. عبد الخبیر جاهد

د کتاب فهرست :

څلورم فصل: خاد او انسان وژونکی نجیب.
پنځم فصل: د نجیب نورې فجایع
لومړۍ برخه: د یو ځوان په صفت د نوموړي شخصیت او کړه وړه :
که څه هم چې کورنۍ یو سپېڅلی تړاو دی، خو ترخه او انکار نا پذیره حقیقتونه له دې هم سپېڅلي دي، کوم چې کله کله کورني تړاوونه او اړیکې داغداره کوي او سره بیلوي یې، او دا بیا څومره ښه خبره ده چې دغه حقایق د تاریخ په داسې نازکو شېبو کې خبرې وکړي چې ملت له مرګ او تورو ورځو سره لاس او ګریوان دی .
ددغه حقایقو پیل زما د ورور نجیب الله ژوند دی، چې زمونږ د کورنۍ مشر زوی و، زمونږ پلار اختر محمد چې د پکتیا د احمدزیو له قوم څخه و، د خپل اکا له لمسۍ ښاغلې حلیمې سره واده وکړ، ددغه کورنۍ لومړی ماشوم زما خور صالحه وه، دا چې زما پلار مناسب سواد نه درلود، یوازې له ملا نه یې سواد زده کړی و، او له بلې خوا په پښتنو کې د لور زیږیدل شرم ګڼل کېدو، پلار مې د لورد زیږېدو له کبله په غوسه و، له همدې وجې د بل واده په فکر کې و، که ګوري نجیب دنیا ته راغی، پلار مې د نوموړي له زیږېدو سره له دوهم واده نه تېر شو، د نجیب پیدایښت مې د مور او پلار لپاره ښه زیری و، له نجیب نه وروسته دوه نور ماشومان پیدا شول، چې په ماشومتوب کې وفات شول، زه له نجیب نه شپږ کاله وروسته تولد شوی یم. له ما نه وروسته مې خور ( کوکۍ ) او دوه ورونړه، احمدزی او روښان تولد شوي .
زمونږ کورنۍ په لومړي سر کې له اقتصادي ستونزو سره لاس او ګرېوان وه، په هغه وخت کې مو د کابل په مرادخانیو کې د خپل مورني نیکه په کور کې هستوګنه درلوده، پلار مې په ماشومتوب کې مور او پلار له لاسه ور کړي وو، له یوه ورور او دوه خویندو سره یې په پکتیا کې د خپل اکا سره ژوند کولو، اکا یې نشوای کولی ددوی مناسبه سرپرستي وکړي، پلار مې له خپل ورور او خویندو سره ډېر سخت ژوند تېر کړی و، کله یې چې خویندو ودونه وکړل، له خپل کوچني ورو سره د ځینو خپلوانو د مرستو په مټ چې په کابل کې وو، کابل ته راغلل، چې بیا وروسته دهمدغه خپلوانو په واسطه یې د خپل اکا لمسۍ چې زما مور کیږي وغوښته او په نکاح یې کړه .
پلار مې چې نوی له پکتیا نه کابل ته راغلی و، د خپل کور د چارو د پر مخ بیولو لپاره په کار پسې ګرځېدو، بالآخره د قره قل په شرکت او په دولتي

ډیپوګانو کې له یو څه کار کولو وروسته یې قطغن ته سفر وکړ، او له محمد ګل مومند سره یې چې دنومړي ولایت رئیس تنظیمه و، پېژندګلوي شوه، چې دغه پېژندګلوي بیا په دایمي انډیوالی بدله شوه، محمد ګل مومند مې پلار د نومړي ولایت په یوه علاقه دارۍ کې د علاقه دار په توګه وټاکلو، چې د ډېر وخت لپاره یې په نومړي ځای کې په ګڼو علاقه داریو کې دنده تر سره کړه، تر دې چې محمد ګل مومند له خپلې دندې نه لېرې کړل شو، او په کور کیناست، پلار مې هم له هغه نه وروسته له دندې تر سره کولو لاس په سر شو، او بیرته کابل ته راغی .

پلار مې له محمد ګل مومند سره د ملګرۍ او پېژندګلوۍ له کبله لږ لږ له سیاسي مسایلو سره علاقه پیدا کړې وه، خو یوازې د پښتونیزم او تر پښتونستان پورې د تړاو لرونکو مسایلو په اړه. نومړي له محمد ګل مومند سره د اړیکو په ساتلو کې له ډېرو کسانو سره پېژندګلوي پیدا کړه .

په دې وخت کې مې پلار بیکاره و، کورنی اقتصادي حالت مو چندان ښه نه و، محمد ګل مومند چې زما له پلار سره یې نېږدې اړیکې لرلې، او پوهېدو چې د ژوند شرایط یې ښه نه دي، پلار ته مې یې مشوره ور کړه تر څو د دولتي څانګو په یوه برخه کې د یوې دندې د پیدا کولو لپاره عریضه وکړي. په هغه وخت کې محمد داود لومړی وزیر و، دا چې محمد ګل مومند پوهېدو چې څه ډول د محمد داود پام خپلولی شي نو پلار ته مې یې مشوره ور کړه تر څو په عریضه کې داسې ټکي ځای پر ځای کړي چې د محمد داود خوښ شي، پلار مې همدا کار وکړ، عریضه یې وړاندې کړه، ډېر وخت تېر نشو چې پلار مې د محمد داود له خوا ور وغوښتل شو، او له لیدو کتو وروسته یې عبد الملک عبد الرحیمزي ته چې د مالیې دوزیر په توګه یې دنده تر سره کوله ور معرفي کړ، تر څو د خپل وزارت په کومه اړونده اداره کې یې مقرر کړي .

عبد الملک عبد الرحیمزي نومړی د نقلیاتو په ریاست کې چې بیا وروسته د ترانسپورت ریاست شو، مقرر کړ. او د دندې د تر سره کولو په منظور یې پېښور ته د نقلیاتو د مدیر په توګه ولېږلو. د پښتونستان پر سر د افغانستان او پاکستان د اړیکو له خرابېدو وروسته د جانبینو دفترونه په دواړو هېوادونو کې وتړل شول. پلار مې بیرته کابل ته راستون شو.

هغه وخت چې پلار مې په پېښور کې و، د نیک محمد په نامه یو کس چې هغه هم په پېښور کې په افغان تجارتي وکالت کې مامور و، زما خور یې غوښتې

وه، تر څو واده ور سره وکړي، پلار مې پرته له دې چې د نوموړي سابقه، اخلاق، کړه وړه مطالعه کړي، د نوموړي د زيات فشار او ټينګار په نتيجه کې دغه خيښي وکړه، خپله ديارلس کلنه لور صالحه يې دغه فاسد سړي ته چې د نجيب د چټلکاريو د پيل سبب شو ور کړه.
زه په دغه وخت کې پنځه کلن ماشوم وم، او دماشومتوب په همدې بې خبره عمر کې مې د خپلې خور له خاوند نه کرکه درلوده، ښه مې نه ايشيدو، سره له دې چې د نوموړي په اړه مې کافي او مناسب معلومات نه لرل، مګر نجيب چې لوی و، تقريبا د ښوونځي په پنځم ټولګي کې و، له همغه لومړي سره يې له نوموړي سره ښې اړيکې لرلې...
پلار مې کله چې محمد داود د صدر اعظمی له پوست نه څنګ ته شو، له پېښور نه کابل ته تبديل شو، خو له نوموړي سره يې خپلې شخصي اړيکې ساتلې، ډېر ځله به د ليدو کتو لپاره د محمد داود کور ته ور تلو، دا چې محمد داود د پښتونستان موضوع جدي نيولې وه، د خدايي خدمتګارانو د تحريک او د سورو جنډو والاوو چې د عبد الغفار خان تر مشرۍ لاندې يې فعاليت کولو ملاتړ کولو، پلار مې هم د خپل پښتونيستي اړيکو له مخې د محمد داود د دريځ ننګه کوله، او ستايلو به يې، د اړيکو همدا ادامه ددې لامل شوه چې پلار مې يو ځل بيا د محمد داود د ولسمشرۍ پر مهال په پېښور کې د هغه د باور وړ کس او د تجارانو د وکيل په توګه مقرر شي .

پلار مې په پېښور کې دخپلې هستوګنې پر مهال د صوبه سرحد له مشهورو کسانو او د خدايي خدمتګارانو له تحريک سره چې بيا وروسته يې د عوامي نشنل ګوند را منځ ته کړ اړيکې پيدا کړې وې، له عبد الغفار خان ( پاچاخان )، عبد الغني خان د عبد الغفار خان مشر زوی، عبد الولي خان د عبد الغفار خان زوی او د عوامي نشنل ګوند مشر، ارباب سکندر خان خليل، اجمل خټک او له دا ډول نورو خلکو سره يې دوستانه اړيکې لرلې، کله کله به يې ليده کاته ور سره کول، د پلار دغه پېژندګلوۍ مې په پېښور کې د نجيب د فعاليت لپاره ښه زمينه برابروله، چې بيا وروسته د دموکراتيک خلق ګوند له دغه پېژندګلوۍ نه زياته ګټه پورته کړه.

کله چې مو چې پلار په پېښور کې و، د ښوونځيو له ژمنيو رخصتيو نه په استفادې سره به مونږ له خپلې کورنۍ سره هلته تللو، تقريبا هر کال به مو درې مياشتې هلته تېرولې، زه په هغه وخت کې په ابتدايي ښوونځي کې وم، او نجيب په حبيبيه ليسه کې د ثانويې دورې په زده کړو بوخت و. نوموړی په ابتدايي دوره کې د زده کړې له مخې وتلی او لايق زده کوونکی نه و، ښو نومرو اخيستو ته يې چنداني پاملرنه نه کوله. ډېر وخت به له خپلو ټولګيوالو او د هستوګنې د ځای ( کوڅې ) له هلکانو سره د ماشومتوب د وخت په لوبو بوخت و. تل به يې دا هيله لرله چې د هغوی په منځ کې مهم کس وي، د نوموړي ځانځاني ددې لامل ګرځېده چې ډېری وخت له هغوی سره په جګړو او کشمکش کې وي، دوه ځله يې د جنګ په نتيجه کې پزه ماته شوې وه، د ابتدايي دورې له خلاصېدو وروسته يې ډېره علاقه درلوده چې د کور په چاپېريال کې حاکم او نافذ و اوسي. ددې تر څنګ يې همدا ډول د کوڅې او دښوونځي دهلکانو تر منځ ځان ته يوه ډله جوړه کړې وه، چې کولی يې شوای له هغوی سره وګرځي را وګرځي.

نوموړي له موسيقي او هندي نڅاګرو سره ډېره مينه لرله، ډېرې شپې به يې د نڅاګرو خوبونه ليدل. چې دی بې دفلم هيرو وي. د ښو جامو اغوستلو ته يې پاملرنه کوله، البته هغه به يې د کور د بدبختۍ په بيه تيارولې. په دا ډول چارو کې به نجيب زما د خور د خاوند نيک محمد له ملاتړ نه برخمن کېدو، د نجيب د لګښتونو ډېری پيسې به نيک محمد ور کولې. ځکه چې نيک محمد خپله د کمزوريو اخلاقو خاوند انسان و، په ځانګړې توګه نوموړي له بد اخلاقه هلکانو او بدکاره ښځو سره اړيکې ساتلې. او نجيب يوازينی کس و چې د نوموړي په دغه کړنو خبر و، او ښه پوهېدو چې نيک محمد د سردار مهتاب د کلا په مهمانخانه کې چې دده د جرم له ملګرو نه و څه ډول بيکاره او د انساني اخلاقو پر خلاف کړنې تر سره کوي.

دا چې نيک محمد نه غوښتل په کور کې يې راز افشا شي نو نجيب يې په څنګ کې نيولی و، او د هغه د پټه خوله پاتې کېدو په بدل کې يې کلنګ ور کولو، د نجيب د عياشۍ او لګښتونو پيسې به يې ورته برابرولې. نيک محمد استفاده طلبه او رشوت خور سړی و، کله يې چې په تورخم کې د ګمرک د

مدیر په توګه دنده تر سره کوله، قاچاق او قاچاق بري دنوموړي ورځنی کار و، زما په یاد دي چې د شپېتو لکو افغانیو شاوخوا په بیه برنجي خښتو ته یې چې په هغه وخت کې ډېرې پیسې وې، طلایي رنګ ور کړی و، او په یو هندي تاجر باندې یې خرڅې کړلې، او دغه معامله د شورا د دولسمې دورې له انتخاباتو سره په نږدې وخت کې وه، نیک محمد له ډېرو پیسو نه په استفادې سره چې د رشوت خورۍ او قاچاقبرۍ له لارې تر لاسه کړې وې، د کوهدان له میربچه کوټ سیمې نه ځان دولسمې دورې ته کاندید کړ، مګر یو ناڅاپه د هغه د قاچاق مسله رسوا شوه، دامنیتي چارواکو له خوا ونیول شو او زنداني شو، نجیب په دې وخت کې منځګړیتوب وکړ، د نیک محمد د خلاصون لپاره یې له امنیتي او نورو چارواکو سره اړیکې نیولې، نجیب د کابل د امنیه قوماندانۍ مشر ته چې ګل نبي خان نومیده ځلور لکه له قاچاق نه لاسته راغلې پیسې ور کړې چې له زندان نه د نیک محمد د خلاصېدو لامل شوې.

نیک محمد له خلاصېدو وروسته د نجیب د هڅو بدله ور کړه، ښه او زیات د عیاشۍ او ښه وخت تېرولو امکانات یې په واک کې ور کړل. نجیب د نیک محمد د رشوت او قاچاقبرۍ په مفتو پیسو هند ته یو سفر وکړ، او بیا یې هم په آرام زړه د نیک محمد په څنګ کې شرمېدلي ژوند ته ادامه ور کړه، مونږ په همدې وخت کې د ده افغانانو له کور نه کارته پروان ته کډه کړې وه، د تېر په څېر په یو لوی کور کې چې نیک محمد د رشوت خورۍ په پیسواخیستی و، په کډه یو ځای ژوند کولو، دغه کور زمونږ د بود باش له تعمیر پرته مهمانخانه هم لرله، چې له هغې نه دمیلمنو لپاره کار اخیستل کېدو، نجیب به خپل ډېر وخت په همدې ځای ( مهمانخانه ) کې تېرولو .

نجیب د خپلې ځوانۍ او جنسي غرایزو په ځواکمن پړاو کې و، چې په یوه حیواني اوغیر انساني توګه به یې پوره کولې، د یوه چټل حیوان په څېر به یې د ناتوانه خلکو په ښځو، لورانو، او ښایسته هلکانو حملې کولې. له خپلو ملګرو سره په ګډه به یې په خپل منځ کې یو له بل سره د لواطت بد عمل تر سره کولو، ډېری وخت به د همدې کشمکش له وجې جنجال او جګړه پېښېده. نجیب به له خپلو ملګرو سره په ډله ایزه توګه له جانب مقابل سره جګړه کوله، یو او بل به یې سره وهل، نجیب د زیبایي اندام د سپورت وسایل په کور کې تیار

کړي وو، هر مازدیګر له سپورت او وزن پورته کولو ورسته به دخپلو همجنس بازانو له ډلې سره یو ځای کېدو او نوې فتنې او فسادونه به یې تر سره کول. نجیب له هغو مادي امکاناتواو پیسو نه په استفادې سره چې په واک کې یې وې، له هلکانو سره د بدکارۍ تر څنګ له نجونو سره هم بدکارۍ کولې. تاج محمد او امیر محمد د هغو هلکانو له ډلې څخه وو چې نجیب به له نیک محمد سره په ګډه د کور په مهمانخانه کې بدکارۍ ور سره کولې.

زما په یاد دي چې یوه ورځ د نجیب یوه ملګري چې تور ببرک نومېده، یو ځوان یې په یوه بهانه د دوه درې نورو کسانو په واسطه د نیک محمد مهمانخانې ته راوست، او په ګډه یې د هغه په عزت او شرف تجاوز وکړ، چې د نجیب او ملګرو دغه شرمناک انسان ضد عمل نوموړی ځوان تر دې کچې وځورولو چې د مرګ لامل یې شو. نجیب به له خپلو ملګرو سره جوالیان چې یوه محرومه طبقه ده په بهانو مهمانخانې ته راوستل، بیا به یې دروازه ټینګه بنده کړه، او تجاوز به یې پرې کولو. نجیب همدا رنګه له نجونو سره هم ډېر عشق بازۍ لرې، له قمر او ګل غټۍ نه نیولې تر مستورې اصیل او نجیبه کوهستانۍ او نورو پورې بدکاره نجونې د نجیب معشوقې وې.

زما ښه په یاد دي چې کله زما مشره خور له ګل غټۍ سره د نجیب له عشقي اړیکو نه خبره شوه، له نوموړې سره به یې جنجال او کشمکش شو، غوښتل یې له نوموړې نجلۍ سره د نجیب د اړیکو مانع وګرځي، مګر نجیب تر دې کچې و ډبوله چې ملا یې عیبي شوه. په دې وخت مې نیا غوښتل له خور نه مې دفاع وکړي، تر څو له وهلو ډبولو نه د نوموړې د خلاصون لامل وګرځي، مګر نجیب پرته له دې چې د هغې سپین سرې، مشرې او احترام په نظر کې ونیسي، د وحشي حیوان په څېر یې پر هغه هم حمله وکړه، هغه یې هم تر بې رحمه ګوزارونو لاندې راوسته. هغه ښځه چې له مونږ سره یې د بوې نړۍ مینې او عاطفې په واسطه زمونږ غم خوړلی وو، باید د هغې احترام یې کړی وای، مګر د هغه په وړاندې د لویې ګناه او بې حرمتۍ مرتکب شو، چې د بخښلو نه دی.

نجیب یوه ورځ چې جیب یې له روپیو تش شوی و، مور ته مې راغلو، او روپۍ یې  ترې وغوښتې، مور مې چې روپۍ یې نه لرلې، منفي ځواب یې ور کړ، نجیب خبرې ور سره غبرګې کړې، تر دې چې بالاخره خبره جنجال ته ورسېده، مور مې د نجیب تر وحشیانه وهلو ټکولو لاندې راغله.  ځکه چې د نوموړي د عیاشۍ د لګښت پیسې یې ور نه کړې. مور تر ډېره پورې خپل هغه ویښتان چې نجیب پرې کښلي وو، د یوې ترخې خاطرې په توګه له ځان سره ساتلي وو. ..

نجیب له سخت درېځۍ او بد خویۍ سره هوکړه کړې وه، او دغه اخلاق یې د خپل ژوند یو امتیاز  ګڼلو، ویاړل یې چې د کور ټول غړي له ده څه یرېږي، له دې وجې چې مور، نیا، ماما، خورګانې او واړه وروڼه مرګوني وهې. د درواغزن غرور او رواني آرامۍ احساس یې کولو.

نجیب له خپل دغه کردار سره هم کرکه پنځوونکی او هم ډار اچوونکی و، نوموړي دکورنۍ ټول غړي وهل او ټکول، له پلار نه مې پرته، بل هېڅوک د نوموړي له وهلو ټکولو نه بې داغه نه وو پاتې، دنوموړي دغه وهل ټکول تر دې کچې وحشیانه وو چې زمونږ د کورنۍ معصومو ماشومانو به چې کله دده آواز واورېدو، غړي به یې وتښتېدل، او له ډاره به یې ځان ته یو پناه ځای لټولو. د نجیب وهلو ټکولو زمونږ د کورنۍ ډېری ماشومان په رواني ناروغیو اخته کړل. ټول جنجالي، بد اخلاقه، سخت او بې کاره راغلل، په ټولنیزو تعاملاتو کې ځانځانې او سختې اکثرا د دوی د تعامل یو جزء لایتجزی ګرځېدلی. لکه څنګه چې علمي تحلیل حکم کوي چې له ماشومانو سره سخت چلن د هغوی په لویوالي کې را څرګندېږي، او د ماشومانو شخصیتونه هماغه د ماشومتوب په وخت کې جوړېږي، پر همدې اساس له ماشومانو سره د بد او سخت چلن مخنیوی دقیقه پاملرنه غواړي.

مګر نجیب په بې پروایۍ سره پرته له دې چې رواني او روحي حساس مسایل په نظر کې ونیسي، زمونږ په بې رحمانه وهلو ټکولو به یې لاس پورې کولو، او ټول یې بې روحیې افراد او ډارن جوړول.

نجیب د ښوونځي په ثانوي دوره کې ښې نومرې لرلې، دساینس او ریاضیاتو په مضامینو کې به یې لوړې نومرې اخیستې، د خپل ټولګي ممتاز زده کوونکی ګڼل کېدو، نوموړی له ښه استعداد نه برخمن و، مګر متاسفانه چې په سالمه او سمه لار کې یې له هغه نه ګټه پورته نه کړه، هر وخت یې د فتنو په جوړولو

کې گټه ترېنه اخيسته. نجيب د حبيبيې ښوونځي تر پايه د پلار د تېر ايستلو لپاره مې د اخلاقي فساد تر څنګ ديني فرايض تر سره کول، لمونځ يې کولو، روژه يې نيوله، د قرآن کريم ختم به يې کولو .

پلار مې چې ديندار سړی و، د نجيب په دې کار به خوشحاله کېدو، خو که يې اولادونه په غلطو لارو تلل، ده يې د اصلاح او ښه والي لپاره هېڅ ډول هڅې په کار نه اچولې. پلار مې هېڅکله د کورنۍ د يوه مسول او رئيس په توګه و نشو کړی چې د پلارتوب دندې تر سره کړي، د غفلت په خوب کې داسې ډوب و چې هېڅ کله نه پوهېدو چې دده په کور کې څه تېرېږي، او زوی يې د کومو بيکاره، بدو او د انساني کرامت پر خلاف اعمالو مرتکب کېږي؟ د نجيب مطلق العنانۍ، وېرې او وحشت د کور فضا په يوه ځنګل بدله کړې وه، داسې چې قوي بايد کمزوری وخوري. د نجيب و حشتناک استبداد پلار د پلارتوب له دندو څخه بر طرف کړی و، ځکه د نجيب وحشت او ډار پلار ته د را څرګندېدو فرصت نه ور کولو، پلار په کورنۍ کې په بشپړ ډول د پلارتوب نقش بايللی و، يوازې يوه دنده يې لرله، چې له هرې مشروع او غير مشروع لارې د کورنۍ د ژوند، او دنجيب د ګوند بازۍ، عيش او عشرت لپاره يو څه پيسې را پيدا کړي. زمونږ له کورنۍ نه د تفاهم، محبت، انسانيت، عاطفې، دوستۍ، او يو د بل حقوقو ته د احترام فضا کډه بار کړې وه، نجيب يو ځای مور د پلار، پلار دمور، خور د خور، ورور دورور پر ضد را پارول، ټول يې يو پر بل ور هڅول، او بيا به يې بهانه جوړه کړه او ټول به يې تر مرګونو وهلو لاندې ونيول. خو بيا هم پلار مې د ټولو دغو بدبختيو مسول دی، چې ولې يې په ماشومتوب کې له دا ډول يو بې رحمه موجود سره مقابله ونه کړه، پرې يې ښود چې لومړی کورنی چاپېرياړ او بيا يې لويه ټولنه د خپل مشر زوی د نالايقۍ قربان شي.

نجيب مې که پلار په لمونځ او عبادت کولو تېر ايستلو، آيا پلار فکر نه کولو چې تقوی او پرهيزګاري بشپړ روښانه مفاهيم دي؟ انسان ته ښايي چې خپل ځان له هر ډول ګناه څخه پاک او ستره وساتي، غلا، وژل، زنا، لواطت، د الکولي مشروباتو څښل، رشوت خوري، سود خوري، پر معصومو ښځو تجاوز کول، او غلطه استفاده، د اسلام په دين کې لويې ګناوې ګڼل کېږي، او الله جل جلاله ددغه اعمالو تر سره کوونکي نه بښي، او دغه شرمناک اعمال له اسلامي قوانينو، او زمونږ عنعنوي ټولنې له مقرراتو سره مغايرت لري، هره ټولنه خپل ځانګړي قوانين او اخلاق لري، آيا له هلکانو او نجونو سره بدکاري کول جواز

لري؟ نجیب چې ځان یې لمونځ کوونکی، پرهیزګار او دقرآن شریف ختم کوونکی ګڼلو، آیا نه پوهېدو چې ټول دغه اعمال چې دی یې تر سره کوي د اسلام د دین له قواعدو او مقرراتو سره منافي دي؟ هو، ښه پوهېدو، مګر شریر او شیطاني نفس یې غلبه پرې کوله، او دی یې دېته هڅولو چې دا ډول ژوند پر مخ بوزي.

نجیب به د غیرت، ننګ او ناموس خبرې کولې، مګر په کور کې یې د کور د خدمتګارانو په ناموس تجاوز کولو. هغه وخت چې نجیب د حبیبیې په ښوونځي کې په زده کړو بوخت و، خور مې دنیک محمد مېرمنې زمونږ د سالنګ له وطنوالو نه یوه کورنۍ د خادمې او مزدورې په توګه نیولې وه، په دغه کورنۍ کې یوه مېرمن وه چې په ( تبرکو ) به یادیده، نجیب به هر وخت د لږو پیسو په مقابل کې د هغې له بدن نه ناوړه استفاده کوله، په یوه بستره کې به ور سره یو ځای کېدو. کله چې نوموړې بې اسرې مېرمنې په خپله ګېډه کې له نجیب نه ماشوم روزلو. نجیب پرته له دې چې د وجدان آواز ته غوږ ونیسي، نوموړې یې په زور له کور نه وایستله، او بیا یوه نشوو چې بیچاره مېرمن د کوم برخلیک په لوري د نجیب د هوسرانۍ قرباني شوه. دا د کور لومړنۍ او وروستنۍ بدبخته خادمه نه وه، او دغه طبقه چې نجیب به یې په کلونو شعار پورته کولو، د نجیب د شهوت رانیو هدف ګرځېدله.

یوه ورځ زه زمونږ د کور د تشناب تر څنګ چې زمونږ د وتلو د دروازې له اوږده دهلیز سره نښږدې و، تېرېدم، یو ږغ مې تر غوږ شو. ور لنډ شوم. ګورم چې ( ګل بانو ) هغه معصومه مزدوره نجلۍ چې زمونږ په کور کې یې کار کولو له نجیب سره خبرې کوي. بیچاره نجلۍ د نجیب په پښو کې سوال او زارۍ کولې، او پرله پسې یې ترې غوښتل چې په عفت یې تجاوز ونه کړي. داسې زارۍ یې کولې چې کېدای شي نارې یې د الله جل جلاله تر عرش پورې رسېدلې وې. ولې دغه شرف بایللی موجود ( نجیب ) چې له خباثت، نامردۍ او ګناه سره یې هوکړه کړې وه، او دغه شیطاني صفات چې شیطان دده په سترګو، زړه او دماغ کې ښایسته کړي وو، د نجلۍ زاریو ته یې غوږ ونه نیو، د ځناور په څېر یې د نوموړې په عفت تجاوز وکړ. او دغه قرباني شوې نجلۍ هم دخپل بد بخت برخلیک په لوري لاړه.

ژوند نجیب ته د کمزرو او ناتوانو پر حقوقو له تجاوز، او دخپل قدرت له ساتلو پرته بل مفهوم نه درلود، او پلار مې د نجیب ټول شیطاني کړنې په

سترګو ليدلې. مګر د نجيب د پليدو اعمالو په مقابل کې او د هغه په وړاندې د درېځ په خپلولو کې له هر ډول جراءت نه خالي او ناتوانه و، يوازې دخپلو پښتونستي تنګ نظره نظرياتو د وړاندې کولو عاشق و او بس. فکر يې کولو چې تړوله نړۍ، او د ژوند مسايل په څلور کليمو پښتو، پښتون، پکتيا او پښتونستان کې خلاصه کېږي. نور يې هېڅ ډول وطني، وجداني، او دکورني مسوليت احساس نه کولو. او د نجيب د ناروغي اروا په مقابل کې يې جدي عکس العمل نه ښودلو. نجيب د خپلو وهلو او ټکولو له وجې د کور د ننه داسې فضا راوستې وه چې چا نشواى کولى له ده نه پلار ته شکايت وکړي، او کله که به له چا نه شکايت ډوله خبرې وشوې، نجيب به هغه په زړه کې ورته واچول، او سمدستي به يې د هغه بدله ترې اخيسته. له يو څه وخت وروسته به يې بله موضوع بهانه کړه، او خپل غچ به يې اخيست، په حقيقت کې د نجيب په اصل کې د ترحم، عاطفې، شفقت او مهربانۍ په نامه څه شي شتون نه درلود. نوموړي ته سختۍ او زور مفهوم لرلو، چې د ژوند هر څه پرې حلال ګڼل کېداى شواى. د همدې درک پر اساس به نجيب داسې کسان لټول چې له ده سره په ذهنيت او کړو کې ورته والى ولري، له هغوى سره به ډېر زر ملګرى شو، بې ځايه او بې ګټې ګرځېدل او بلنې به يې تر سره کولې. تر هغه چې نجيب سياست ته نه وه مخه کړې، اصلا د مطالعې او لوستلو اهل نه و، هېڅ ډول علمي، ادبي، فلسفي آثار يا کيسې او ناولونه يې نه وو لوستي، يوازې له يو څو نورو بدماشانو سره به يې ژوند د يوې لوبې په څېر تېرولو، که څه محدوده مينه يې له موسيقۍ او سپورت سره لرله هم، د رواني اړتياوو، او د سالم او منطقي علمي درک په اساس نه وه، يوازې د ځان ښودلو لپاره و، چې غوښتل يې پر همزولو باندې دخپل ځان او خپلې زورګويۍ د منلو له پاره استفاده ترې وکړي.

**دوهمه برخه: د نجيب د سياسي فعاليت پيل :**

کله چې نجيب له حبيبيې ښوونځۍ فارغ، او د طب په پوهنځۍ کې شامل شو، لا هم په خپلو هميشنيو خيالونو کې ډوب و، چې د پوهنتون علمي چاپيرېال د سياسي پېښو او حوادثو مرکز وګرځېد. د ولسي جرګې دولسمې شورا په خپل کار پيل وکړ، د هېواد د نوي اساسي قانون له مخې لومړي وزير بايد خپله داعتماد رايه له پارلمان څخه اخيستى، له هغې وروسته د پارلمان له خوا د تاييد شوې او تصويب شوې تګلارې په رڼا کې به يې خپل کار او فعاليت پيلولو. د افغانستان پادشاه محمد ظاهر شاه داکتر محمد يوسف موظف کړى و چې د کابينې د جوړولو کار پيل کړي، او له هغه وروسته له پارلمان نه د اعتماد رايه تر لاسه کړي .

د داکتر محمد یوسف د کابینې لپاره د اعتماد د رایې اخیستلو په ورځ له ډېرو
کلونو وروسته د لومړي ځل لپاره د کابل ښار د محصلینو لاریونونو په لړزه
راوستی و، هغوی غوښتل چې د اعتماد د رایې تر لاسه کول باید علني وي، او
د راډیویي څپو له خوا خپاره شي، ددې تر څنګ ځینو کسانو غوښتل چې د
پارلمان تالار ته لاړ شي او مستقیما د اعتماد د رایې اخیستلو د جریان ناظرین
و اوسي .
مګر حکومت له دغه غوښتنو سره مخالفت کولو، او نه یې غوښتل چې د
اعتماد د رایې اخیستنې جریانات علنا خپاره شي، خو هغو کسانو چې د کابل په
پوهنتون کې یې لاریونونو ته لمن وهله، ښار او کوڅو ته را وتلي وو، داسې
لوی ځوړ یې جوړ کړې و، چې هغه زوړ سکوت او خاموشي چې د اوږده
استبداد په نتیجه حاکمه شوي وه، له منځه یوړه. وروسته روښانه شوه چې د
لړم د میاشتې د دریمې نېټې پیښې چې د داکتر محمد یوسف دحکومت د اعتماد
د رایې اخیستنې له جریان سره یې سمون خوړلو، د نور محمد تره کي او
ببرک کارمل تر مشرۍ لاندې د خلق دیموکراتیک ګوند د فعالیتونو په نتیجه
کې را منځ ته شوې وې. هغوی غوښتل د نوي اساسي قانون له مادو څخه په
استفادې خپل موجودیت اعلان کړي، او په سیاسي فعالیتونو لاس پورې کړې.
د نوموړو پېښو له پېښدو سره داسې یو حالت او فضا را منځ ته شو چې داکتر
محمد یوسف و نه غوښتل د صدارت دنده پر غاړه واخلي. ځکه چې د
لاریونونو په نتیجه کې درې کسان ووژل شول.
او دا کار هغه وخت وشو کله چې لاریون کوونکي د محمد یوسف د هستوګنې
د کور په لوري د مختـه تګ په حال کې وو، او داسې شعار یې زمزمه کولو: (
موږ نه غواړو چې داکتر یوسف لومړی وزیز شي ) د داسې یو حالت له را
څرګندېدو سره صحنې ته امنیتي ځواکونه، پولیس او لاریون کوونکي راغلل،
بالآخره د سردار عبد الولي د امر په نتیجه کې چې د قوای مرکز قوماندان او د
پادشاه زوم و، د لاریونونو د پای ته رسولو لپاره امنیتي ځواکونو د لاریون
کوونکو په وړاندې په علمیاتو لاس پورې کړ، چې د هغوی د ډزو په نتیجه کې
درې کسان ووژل شول، او څو نور ټپیان شول .
د کابل ښاریانو او محصلینو لاریونونه تیت پرک شول، مګر د پوهنتون په
چاپیریال کې مظاهرو او راوتلو ادامه درلوده، چې درسي جریان یې ګډوډ کړ.
پادشاه د بحران د کموالي په منظور د داکتر محمد یوسف استعفا قبوله کړه، او
محمد هاشم میوندوال یې د کابینې د جوړولو لپاره و ګومارلو. له یو څو ورځو
وروسته محمد هاشم میوندوال لومړی وزیر وټاکل شو، او په توره درېشۍ کې
چې د ویر نښه وه د کابل پوهنتون د ځوانانو په منځ کې را څرګند شو، د خپلو

خبرو په ترڅ کې يې له هغوی نه وغوښتل چې له لاريونونو نه دې لاس په سر شي، دی به د محصلينو غوښتنې پوره کړي .
په دې وخت کې زه د حبيبيې ليسې په اووم ټولګي کې وم، پلار مې بيا هم دحکومتي چارواکو له خوا په پېښور کې د ترانسپورټ د مدير په توګه مقرر شو، مونږ له ژمنيو رخصتيو نه په استفادې سره پېښور ته لاړو، د رخصتيو له پای ته رسيدو وروسته کله چې کابل ته را وګرځېدو، متوجه شوم چې دنجيب په کړو وړو کې بدلون راغلی، له نويو کسانو سره يې پېژندګلوي پيدا کړې ده، د کتابونو د لوستلو او د سياسي مسايلو په اړه به يې خبرې کولې. له لنډې مودې وروسته پوه شوم چې دغه نوي کسان څوک دي، او نجيب څه ډول له هغوی سره پېژند ګلوي پيدا کړې ده؟
کله چې نيک محمد د پارلمان د دولسمې دورې په ټاکنو کې په پيسو د خلکو د رايو اخيستلو او زرهاوو نورو چلونو په نتيجه کې د کوهدامن د مير بچه کوټ له حوزې نه ګټونکی شو، او د ولسي جرګې غړی شو، هغه هم له نورو نويو کسانو سره پېژندګلوي پيدا کړه، او دغه پېژندګلوي زياتره د هغو اشخاصو تر منځ وه چې په يو ډول نه په يو ډول يې له سياست او سياسي مسايلو سره تړاو درلود. او د پارلمان له چوکيو نه يې يوازې د خپلو شخصي ګټو لپاره کار اخيست، بلکې د مشخصو عقايدو له مخې يې خپل پروګرام ترتيب کړی و، او دپارلمان له ستيج نه يې ترويجول اوتبليغول. د خلق ديموکراتيک ګوند چې په هغه وخت کې تاسيس شوی و، د پارلماني فرکسيون په لېږلو سره يې د هغو کسانو ذهنيتونه ځان ته متوجه کړي وو چې يو څه يې زده وو، دنوموړي ګوند غړيو دخپل کميټ د پراخوالي لپاره د نويو کسانو په جذبولو کې فعالانه کار کولو، کله چې نيک محمد د نوموړي ګوند له يو مشر سره چې هغه سليمان لايق و بلد شو، ددې لامل شو چې نجيب هم له نوموړي سره بلد او دوست شي.
دا چې نيک محمد له يوې خوا له سياسي پلوه کومه پوه او درک نه لرل، له بلې خوا داسې کس نه و چې د ليکلو، او د پارلماني خبرو د ترتيبولو وړتيا دې ولري، ځکه خو يې اړتيا لرله چې يو منشي ولري، تر څو وکولی شي دده خبرې ترتيب کړي، ددې کار لپاره سليمان لايق بهترين کس و، چې ده کولی شوای له هغه نه استفاده وکړي. سليمان لايق هم دخپلو سياسي افکارو د خپرولو لپاره له دا ډول اړيکو نه استفاده کوله. لايق له نيک محمد سره د خپلې انډيوالۍ په دوام وکولی شوای نجيب خپل ګوند ته جذب کړي، ددې تر څنګ د توپچي محمد يعقوب خان زوی توريالي نوموړی اناهيتا ته ور معرفي کړ، تر څو له بې ځايه ګرځېدو نه سياست ته مايل شي .

نجیب له ۱۳۴۳ هـ ش کال وروسته د دیموکراتیک خلق ګوند چې یو کمونیستي ګوند و فعال غړی شو، هغه لومړني کتابونه چې د سلیمان لایق له خوا نجیب ته د سیاسي روزنې او دګوند له عقیدوي مسایلو سره د بلدتیا لپاره ور کړل شوي وو، د فلسفې مقدماتي اصول چې د فرانسوي مفکر ژرژ پلیتسر لیکنه، او دمارکسیزم د فلسفې اصول چې د الکساندر آفاناسیف روسي مشهور محقق لیکنه ده، وو، چې نجیب وروسته هم په خپل ټول ژوند کې د فلسفي درک د لارښود په توګه یادول، او استفاده به یې ترې کوله .

۱۳۴۴ هـ ش کال پسرلی را ورسېد، د کابل پوهنتون محصلینو د لړم ددریمې نېټې له پېښې، او له کوڅه یې لاریونو وروسته په نویو غوښتنو لاس پورې کړ، چې د هغو له جملې نه د محلصینو د ټولنې جوړول و، د محصلینو د ټولنې د جوړېدو په اړه د حکومت او د پوهنتون د ریاست د چارواکو له خوا له ضمني موافقې سره، د نوموړې ټولنې مقدماتي ټاکنې د ټولنې د اساس نامې لپاره تر سره شوې.

نجیب د طب پوهنځی له P.C.B له ټولګي د استازي په توګه وټاکل شو.

نوموړي په خپلو ټاکل کېدو سره وکړای شول چې د ګوند د غړو توجه ځان ته جلب کړي، او ضمنا د پوهنتون د ځوانانو تر منځ را څرګند شي. د خلق دیموکراتیک ګوند په ۱۳۴۵ هـ ش کال کې د خپل تبلیغاتي او خپرندویه ارګان په توګه د خلق ورځپاڼې امتیاز تر لاسه کړ، د نوموړې ورځپاڼې د امتیاز خاوند د ګوند عمومي منشي نور محمد تره کی و. دغه ارګان د شپږو اونیو په ترڅ کې خپلې لیکنې خپرې کړې، چې د خپل ورځني فعالیت او د ګوند دتکتیکي او ستراتیژیکو موخو تګلاره یې روښانه کوله. مګر د پارلمان د استازو د اعتراض له وجې دا تصویب شوه چې د خلق ورځپاڼه دې مصادره شي، او د نشراتو مخه یې دې ونیول شي. د محمد هاشم میوندوال حکومت هم همدا تصمیم عملا تطبیق کړ، او د خلق جریدې نشراتي فعالیت پای ته ورسېد .

له دې تصمیم سره همهال د نور محمد تره کي او ببرک تر منځ چې د ګوند د مرکزي کمېټې د دار الانشاء غړي وو، د دوی د ځان غوښتنې، او قدرت غوښتنې له وجې اختلافات را پورته شول، چې ددوی د دوه ټوټه کېدو لامل وګرځېدل، شوروي اتحاد چې ددغه ګوند ملاتړی و، له دواړو ځان غوښتونکو او قدرت غوښتونکو کسانو نه یې په جلا جلا ډول خپل ملاتړ وکړ.

په دې ترڅ کې نجیب د ګوند د یو فعاله غړي په توګه د ببرک کارمل په څنګ کې سنګر ونیو، او د ببرک په ډله کې چې د پرچم ورځپاڼې له خپرېدو وروسته په پرچمیانو مشهور شول تر پایه پاتې شو. نجیب د حزب د ټوټه کېدو پر مهال له میر اکبر خیبر سره چې د ګوند له بنسټ ایښېدونکو څخه ګڼل کېدو پکتیا ته

یو سفر وکړ، له نوموړي سره له لیدو کتو وروسته په خلق دیموکراتیک ګوند ( پرچم ) کې ټینګ شو .

میر اکبر خیبر د محمد داود د حکومت پر مهال له حربي پوهنتون څخه د فارغېدو په ورځ ونیول شو، نېږدې شپږ کاله زنداني و، له زندان نه له را خلاصېدو وروسته د پولیسو اکادمۍ په کدر کې د ښوونکي په توګه وګومارل شو، دا چې نظامي دنده یې لرله، نه یې شوای کولی په څرګند ډول د ګوند د رهبري هیئت دغړي په توګه فعالیت وکړي، تر دې چې د لږم ددریمې نېټې له پېښې وروسته له خپل کور سره پکتیا ته ولېږل شو، او هلته یې د تبعید په توګه ژوند کولو، همغه و چې له نظامي دندې یې استعفا وکړه، او بیرته کابل ته را وګرځېد، او په ښکاره یې د ببرک کارمل تر څنګ په ګوندي فعالیتونو لاس پورې کړ، نوموړي د سلیمان لایق له خور سره واده کړی و، او داسې یو کس و چې د مارکسیزي افکارو په تبلیغ کې له مناسبې توانمندۍ نه برخمن و، نوموړي له پکتیا ولایت نه په بیرته را ګرځېدو سره په پراخه فعالیتونو لاس پورې کړ، چې په نتیجه کې همغه وضعیت چې د ګوند تر منځ د درځ له را پیدا کېدو وروسته منځ ته راغلی و، بیرته سم شو، نوموړي ځوانان په نظري کورسونو کې منظم کړل، چې ده خپله د مارکسیزم عقیدوي درسونه ور زده کول. نجیب هم د هغو کسانو له ډلې و چې په دغه نظري کورسونو کې درسونه ور کړل شول، نجیب به د کمونیزم د عقېدې د ښې زده کړې لپاره کوشش کولو .

وروسته له هغه چې نجیب د ببرک کارمل په ګروپ کې په ګوندي فعالیتونو پیل وکړ، ورو ورو یې دګوند د فعالینو په حلقو کې شهرت تر لاسه کولو، او د زیاتې پاملرنې وړ به ګرځېدو. دغه دوره د مارکسیزم د بنسټونو د زده کړې مرحله وه، چې نجیب به هغه د مارکس، لنین، او استالین له کتابونو، او د ایران د توده ګوند له نشراتو څخه چې په پټه توګه به زمونږ هېواد ته را واربدېدل زده کول، نجیب به دغه کتابونه او آثار په ډېرو هڅو اوکوششونو راغونډول، او دخپل نظر وړ شیان به یې ترې زده کول، د ایران د توده ګوند د آثارو له جملې نه د نوموړي ګوند د مفکر احسان طبري له فلسفي لیکنو سره یې له کچې وتلې مینه لرله، او ډېری وخت به یې هغه مطالعه کول، او د خپلو خبرو او استدلالونو په برخه کې کار ترې اخیست .

نجیب د خپلو بې دریغه هڅو په مټ توانېدلی و چې د ګوند د پوهنتوني کدر د فعالینو په جمله کې ځان لوړ کړي، په لومړیو کې نجیب په خورا ګرم انداز کې له ببرک کارمل نه له اندازې وتلې دفاع کوله، او دا ددې لامل شو چې ببرک کارمل هم ده ته پاملرنه وکړي، او د ګوندي سازمانونو په تنظیمولو کې ډېره برخه ور کړي، او د سازماندهۍ، او کمونیستي افکارو د نشر په برخه کې د نوموړي له توانمندۍ نه استفاده وکړي. نجیب هم له خپلو وړتیاوو او ظرفیتونو ښخه استفاده کوله. او په دې لاره کې مخ په وړاندې روان و .

نوموړی په یو ښه خوله ور ویناکوونکي بدل شوی و، خبرې به یې ډېرې د ځوانانو خوښېدلې، په ۱۳۴۷ هـ ش کال کې چې د نور احمد اعتمادي د حکومت دوره وه، د ببرک کارمل تر مشرۍ لاندې ډلې د پرچم جریدې امتیاز تر لاسه کړ، چې په منظم ډول یې تر دوه کلونو پورې خپلو خپرونو ته ادامه ور کړه .

په دې وخت کې ګڼې سیاسي ډلې چې د جلا سیاسي رسمونو، لارو او نظریاتو پیروان وو جوړې شوې، او فعالیت به یې کولو، د کابل ښار په پوهنتون او ښوونځیو او اکثره ولایاتو کې ځوانان د خلق او پرچم له سازمانونو سره چې د خلق دیموکراتیک ګوند دوه ډلې وې، او له مسکو نه یې پیروي کوله له یوې خوا، شعله جاوېد چې له پیکنګ نه یې الهام اخیست له بلې خوا د کیڼ لاسو په سیاسي فعالیت بوخت وو، ناسیونالیستي او سوسیالې دیموکراتیکې ډلې په افغان ملتیانو او مساواتیانو کې خلاصه کېدې، د روحانیت او مسلمانو ځوانانو ټولنه د جوړېدو په حال کې وه، ګهیځ او خیبر ورځ پاڼې هغه نشراتي ارګانونه وو چې ددغه ډلو افکار او سیاسي تګلاره یې څرګندوله .

د پوهنتون او ښوونځیو سیاسي چاپیریال لړ او ډېر د خلکو په مختلفو ډلو او پرګنو اغیزه کوله، او د خلکو سیاسي شعور ته یې رشد ور کولو، سیاسي جریانونو په ځانګړې توګه کیڼ لاسو ډلو په هر ځای کې په فعالیت لاس پورې کولو، او خپل سیاسي پلان شوي پروګرامونه یې عملي کول.

۱۳۴۷ هـ ش کال، په کابل ښار او نورو ولایتونو کې د لاریونونو کال ګڼل کېږي. د کابل پوهنتون، او ښوونځیو د محلصینو نېږدې دوه میاشتني لاریونونه، د شبرغان د ګاز اونفتو د کارګرانو لاریونونه، د مزار شریف د ښوونځیو د زده کوونکو په ګډون د کود او برق د کارګرانو مظاهرې، د

پلخمري د غوري سمنټو د کارګرانو مظاهرې، د ګلبهار د نساجی دکارګرانو مظاهرې، د کندوز د سپین زر شرکت د کارګرانو لاریونونه، او نور او نور د هغو سیاسي پېښو له جملې نه وو چې د خلق، پرچم او شعله جاوید کیڼ لاسو سازمانونو له خوا سازماندهي او رهبري کېدلې .

د ۱۳۴۸ هـ ش کال په پسرلي کې د کابل ښار د نارینه وو د ښوونځیو او مکتبونو د زده کوونکو لاریونونه، او بیا وروسته د ابن سینا د لیسې لاریونونه چې د امنیتي ځواکونو او د نوموړې لیسې د زده کوونکو  تر منځ د خونړیو اخ و ډب لامل و ګرځېد، تر دې چې د کابل پوهنتون محلصین هم د ابن سینا د لیسې د زده کوونکو په ننګه را ووزي، او دغه موضوع خطرناکه بڼه خپله کړه. د پوهنتون د لاریونونو له پیل کېدو سره امنیتي ځواکونه د پوهنتون انګړ ته ننوتل، د نارینه او ښځینه زده کوونکو په وهلو یې پیل وکړ. د ښځینه زده کوونکو په بې حرمتی یې لاس پورې کړ، دې پېښې د پوهنتون او د کابل ښار د ټولو ښوونځیو احساسات وننګول، او ددې لامل شو چې د کابل ښار دځوانانو یو سیل ددغه کار د غندولو په نیت په مظاهرو لاس پورې کړي .

د ښوونځیو او پوهنتون د درسونو نورمال جریان ګډوډ شو، تر نېږدې دوه میاشتو پورې د کابل ښاریان د لاریونونو شاهدان وو. بالآخره د نور احمد اعتمادي حکومت یوه اعلامیه خپره کړه، او نوموړې پېښه یې یوه د فتنې جوړولو دسیسه وګڼله. او اعلان یې وکړ چې ددغه ډول کړنو عاملین او فعالیت کوونکي به ونیسي، ددې په سبا د خلق، پرچم او شعله جاوید د سازمانونو یو تعداد محصلین ونیول شول، نجیب، وکیل، او اسماعیل د هغو پرچمیانو له ډلې څخه وو چې د دسیسې جوړولو په تور زندان ته ولېږدول شول، د محکمې د مراحلو له طی کولو چې څلور میاشتې یې ونیوې او په زندان کې یې تېرې کړې، بیرته آزاد شول .

۱۳۴۸ هـ ش کال یو بل سیاسي اهمیت هم لري، او هغه دا چې د پارلمان دولسمه دوره پای ته ورسېده، د دیارلسمې دورې انتخاباتو لپاره تیاری نیول کېدو، ببرک کارمل له دوهمې حوزه نه چې د کابل ښار دریمې او څلورمې ناحیې هم پکې راتلې، خپل ځان نوماند کړی و. هادي کریم دپنجشیر له ولسوالۍ نه ددستګیر پنجشیري په مرسته په ټاکنیزو فعالیتونو لاس پورې کولو. سلیمان لایق د پلخمري له ولسوالۍ نه نوماند شوی و، محمد حسن بارق شفیعي د لغمان ولایت له مرکز نه نوماند و. دا ټول د پرچم ډلې غړي وو، حفیظ الله

امین چې د کابل ولایت له پغمان ولسوالۍ نه نوماند و، د خلقي ډلې په ټاکنیزو فعالیتونو کې یې ګډون کولو، بالآخره ببرک کارمل چې د پرچمي ډلې رهبري یې پر غاړه لرله، د ګوند د غړو او د ښځو د دیموکراتیک سازمان د هڅو او کوششونو په نتیجه کې له دوهمې حوزې نه بریالی شو. او حفیظ الله امین هم دخلق له ډلې نه په پارلمان کې د پغمان ولسوالۍ چوکۍ تر لاسه کړه. ولې دستګیر پنجشېري او هادي کریم زندان ته لاړل، هغوی له څو میاشتو زندان تېرولو وروسته د ببرک کارمل د مشرۍ پر ضد پاڅون وکړ. او د عبد الحکیم شرعي جوزجاني په مرسته د پرچمیانو له ډلې سره پریکون وکړ، او یو تعداد کسان یې پر ځان را ټول کړل، او د خپلې ډلې نوم یې د کار ډله کېښود، چې بیا وروسته د نور محمد تره کي تر مشرۍ لاندې بیرته د خلقیانو له ډلې سره یو ځای شو. نجیب ددغه تحولاتو په جریان کې نوی له زندان نه را خلاص شوی و، چې بیرته په ګوندي کشمکشونو او جنجالونو کې ور ګډ شو، د پرچم ډلې او سازمانونو کاملا یو تشکیلاتي بحران تېر کړ، ددغه ډلې غړو بیا هم له ببرک کارمل سره موافقت او له تره کي سره په مخالفت لاس پورې کړ. میر اکبر خیبر او د پرچم ډلې د رهبرۍ هیئت زیاتره غړي دببرک کارمل په څنګ کې ودرېدل، او بیا یې هم د نوموړي ملاتړ وکړ. نجیب هم چې د ګوند د ځوان کدر د غړیو له جملې څخه و، د ببرک کارمل حمایت یې وکړ، او له هغه نه یې دفاع وکړه. د ۱۳۴۸ هـ ش کال په ژمي کې چې دغه پېښه را منځ ته شوه، ګوند له سر نه تر پښو له ماتې او شړېدو سره لاس او ګرېوان و، سپیرواګنیو چې د امریکا دمتحده ایالاتو د ولسمشر معاون د آسیا څو هېوادو ته له سفر نه وروسته یې افغانستان ته سفر و کړ، ددې سفر په ترڅ کې د کینې لاسو د سیاسي ډلو له خوا اعتراضي لاریونونه ترتیب شول، چې پرچمیانو هم د خپل ګوند دفرکسیون له پاتې غړو سره په لاریونونو لاس پورې کړ، او د فتنې په جوړولو سره چې د امریکا د بیرغ سوځولو، او د امریکا د متحده ایالاتو د ولسمشر ریچارد نکسون د انځورونو سوځولو، او د سپیرواګنیو موټر په خوسا هګیو ویشتلو څخه عبارت وو، په دې توګه یې د خپل سازمان مات او شړیدلی بحراني حالت تر یو ځایه تلافي کړ. نجیب په دې ورځ د مظاهرو د رهبري کوونکو فعالینو له جملې څخه وو، نوموړي د امریکې بیرغ وسوځولو، او سپیرواګنیو یې د انتقادونو په ترڅ کې محکوم کړ، له دې پېښې وروسته د نور احمد اعتمادي حکومت د امریکا د متحده آیالاتو د سیاسي حیثیت د اعادې، او د وضعیت د جبیرې په موخه د پرچمیانو د فعالو غړیو په نیولو چې د مظاهرو په ورځ یې ګډون او وینا وې کړې وې، په ګډوډیو کې یې لاس درلودلی و، لاس پورې کړ. او زندان ته یې واچول. نجیب له خپلو پرچمي ملګرو سره یو ځای

بیا زندان ته ولاړل، دا ځل نه میاشتي په زندان کې پاتې شو. خو دا چې په دولتي ارګانوو کې یې نفوذ درلود په زندان کې هم په راحت وو، مطالعه یې کوله، سپورت یې کولو، ښه خواړه یې خوړل، چې وروسته له ښه صحت او زیات وزن سره له زندان نه را خلاص شول. زندان ته تګ یوازې د سیاسي تبلیغاتو او زیات کرېډت اخیستلو لپاره یوه وسیله شو ورته. په زندان کې یې هیڅ ډول آزار، تهدید او ضرر نه لیدل .

نجیب هم له ښه صحت او پنډ ورمیز سره له زندان نه را خلاص شو، خو دا ځل یې له ببرک کارمل نه دفاع نه کوله، هغه یې یو ځان غوښتونکی او قدرت طلبه شخص ګڼلو، او له اناهیتا سره د نوموړي له عشقي اړیکو به ډېر غرېدو، ببرک هم له نجیب نه خوښ نه و، هر وخت به یې په خپلو ګوندي حلقو او د خپل اعتماد وړ کدرونو کې د نجیب پر ضد تبلیغات کول، او نجیب به یې د سخت دریځی، بیرحمی او نه عطوفت په مظهر معرفي کولو.

**دریمه برخه: له یوې بدکارۍ سره د نجیب واده:**

په ۱۳۵۰ هـ ش کال کې په پوهنتون کې د محصلینو د ټولنې خوځښت خپل اوج ته ورسېد، سیاسي ګوندونو ( پرچم، خلق، شعله جاوید ) او مسلمانو ځوانانو دکابل پوهنتون د ټولو پوهنځیو له ټولګیو څخه خپل خپل نوماندان د محصلینو د ټولنې شورا ته معرفي کړي وو .

له نوموړو سیاسي ګوندونو نه هر یوه غوښتل په ټولنه کې له زیات نفوذ څخه برخمن وي، تر څو وکولی شي له هغې نه زیاته ګټه پورته کړي.

د محصلینو دټولنې ټاکنیز فعالیتونه ددې لامل ګرځېدل چې د پوهنتون ځوانان د سیاسي برنامو مخ پر وړاندې بیولو کې زیاته برخه ولري. د نوموړي کال په مني کې د محلصینو د ټولنې د شورا د استازو ناستې له ټاکنو وروسته دایرې شوې. د شورا د ناستو په یو کلنه دوره کې د استازو ترکیب متفاوت و، د کابل او ننګرهار پوهنتونونو محصلینو زیاتره د کیڼ لاسو سازمانونو فعالینو ته رایې ور کړې وې. شعله جاوید ۲۱ نفره، پرچمیان ۱۰ نفره، مسلمان ځوانان ۹ نفره، خلقیان ۴ نفره، او بې پرې کسان ۵ نفره، د ټولنې غړي ټاکل شوي وو.

نجیب هم د پرچمیانو د استازو له غړو څخه، د طب له پوهنځی نه د خپل ټولګي د استازي په توګه انتخاب شوی و، ده او خلیل ( زمر ) د محلصینو په

ټولنه کې د پرچميانو د نماينده ګی د هيئت ګروپونه رهبري کول. د محلصينو ټولنې د همدې کال په ژمي کې د پوهنتونونو د لوايحو د رد لپاره چې د يموکراتيک ماهيت يې نه لرلو عمومي اعتصاب اعلان کړ، ددرسونو جريان قطع شو، د پوهنتون استاذانو هم د محلصينو له ټولنې نه دفاع وکړه، او د مظاهره چيانو له صفونو سره يو ځای شول، له مظاهره چيانو سره د دوی يو ځای کېدل د پوهنتون د استاذانو د ټولنې د جوړېدو اساس وګرځېدل.

نجيب په دې وخت کې د سليمان لايق په وسيله د دکتور انس د خور حميرا سراج له کورنۍ سره وپېژندل ( دکتور انس په شاهي دور کې د اطلاعاتو او کلتور وزير و) ددې موضوع مخينه جالبه ده، سليمان لايق هغه وخت چې په راديو افغانستان کې دنده تر سره کوله له شهلا جيلاني سره چې د حميرا سراج د کورنۍ مشره لور وه عشقي اړيکې لرلې، د نوموړې لپاره به يې عشقي شعرونه زمزمه کول، او ډېری وخت به په خپله اداره کې د ډېرو عشقي احساساتو او شور له وجې له ځان نه بيخوده کېدو. او شهلا جيلاني به نوموړی د خپل ناز او نخرو او خپلې فحاشۍ د سحر په لومو کې ساتلو.

شهلا جيلاني له مختلفو افرادو سره د پراخه بدکارۍ د اړيکو له وجې بالآخره په ځانوژنې لاس پورې کړ، د شهلا جيلاني د ځانوژنې دليل ډېرو خلکو ته معلوم و، کله چې شهلا جيلاني له خپل خاوند سره له تحصيلي بورس نه په استفادې سره مصر ته لاړه، هلته له فضلي سره چې د پوليسو صاحب منصب و، اوهغه هم د تحصيل لپاره راغلی و، آشنا شوه، او اړيکې يې ور سره جوړې کړې. بالآخره دغه اړيکې تر دې کچې مخکې لاړې چې يوه ورځ د شهلا خاوند نوموړې له فضلي سره په يوه بستره کې يو د بل په غېږ کې ګير کړل. خاوند يې دداسې يو حالت په ليدو سره له دې کبله چې دا يوه خيانتکاره او بدکاره ښځه ده طلاقه کړه. او بيرته يې کابل ته را ولېږله. شهلا چې د بدکارۍ کسب يې له خپلې مور نه زده کړی و، وروسته له طلاق نه بيا هم خپلې بدکارۍ او بد اخلاقۍ ته ادامه ور کړه. کله چې فضلي کابل ته راغی بيرته يې اړيکې ور سره ټينګې کړې. تر دې چې له نوموړي نه اميدواره شوه. شهلا د خپل له لاسه تللي ژوند د تلافۍ لپاره له فضلي نه د واده کولو هيله وکړه. خو دا چې فضلي نوموړې ته د يوې بدکاره ښځې په سترګه کتل، او هميش يې د دې له بدن نه د خپل شهوت او هوسرانيو د مړولو لپاره استفاده کوله، حاضر نشو چې له نوموړې سره واده وکړي. شهلا د فضلي له خوا د نه، ځواب په اورېدو

په ځان وژنې لاس پورې کړ. او ځان يې له هغه موټر نه چې دا او فضلي پکې سپاره وو، بهر ته را وغورځاوه. او دا پېښه يې دمرګ لامل شوه.

له ځانوژنې وروسته کله چې د عدلي طب د ډاکترانو له خوا معاينه شوه، ثابته شوه چې ناروا حمل يې په خپله ګېډه کې روزلو. د شهلا جيلاني مور، حميرا سراج، او يا که دقيقتر ووايو حميرا جيلانې، د کابل په هوټل کې د آشپزانو د مشرې په توګه دنده تر سره کوله. نومورې خورا بد اخلاقه، فاسده او کرکجنه ښځه وه. تل به يې شراب څښل. قمار به يې وهلو. او له نارينه وو سره به د هوسبازۍ لپاره همبستره کېدله. کله به يې چې په قمار بازۍ کې پيسې وبايللې، نو بيا به يې د خپلو هم کسبه او هم مسلکه نارينه وو لپاره د خپلو لورګانو هرې يوې: شهلا، ليلا او فتانې دلالي کوله. او د خپلو لورګانو په بدنونو باندې د تجارت او معاملې په نتيجه کې به يې پيسې تر لاسه کولې. دا دنده او مسلک يې نه يوازې دا چې د کابل په فسادخانو کې تر سره کولو، بلکې د کابل په هوټل کې يې د پيسو د لاسته راوړلو لپاره بد کاره ښځې او نجونې بهرنيو سيلانيانو ته هم وړاندې کولې. حميرا له خپلې يوې بلې بد شکله خور سره چې د سردار سميع جان مېرمن وه په شهر نو کې قلعه فتح الله خان ته نېږدې اوسېده. د نومورې په کور به يې د شپې مجالس ترتيبول. او د کورنيو شرابو په پخولو سره به يې فاسد او بد اخلاقه کسان بدکاره نجونو ته راغونډول. او خپل دغه شرمناک ژوند ته به يې ادامه ور کوله. نومورې له رحمن جوود او تور ببرک سره د ناروا جنسي اړيکو په لرلو سره د ليلا او فتانې په نامه نړۍ ته نورې حراميانې راوړې. چې دوی په بدکارۍ او فحاشۍ کې دخپلې مور لاسونه تر څټ ور وتړل... د حميرا سراج بدکاره لورګانې به کله کله د پاچا د زامنو د پام وړ هم ګرځېدې. شهزاده نادر او شهزاده داود پښتونيار به د عياشۍ لپاره د نومورو له جسدونو استفاده کوله.

د حميرا سراج خاوند حاکم جيلاني و، چې ځان ته يې مومند تخلص ايښی و. نوموړی عياش، شرابخور او مفعول کس و. چې هميشه يې په خپل ژوند کې د ځان سړولو لپاره يو سړی ساتلو... سليمان لايق له داسې يوې کورنۍ سره چې خورا پرېوتي صفات او اخلاق يې لرل رفت آمد کولو او اړيکې يې ور سره لرلې. او د شهلا جيلاني لپاره به يې عشقي شعرونه جوړول.
سليمان لايق د هغو اړيکو له مخې چې له شهلا جيلاني سره يې لرلې، يو ښه خدمت وکړ. نجيب يې د حميرا سراج د دوه ناوړه، بې استعداده خو بدکاره لورګانو لپاره د کورني ښوونکي په نامه ور معرفي کړ.

نجیب په دې توګه یوې نوې فساد خانې ته لاره پیدا کړه او تر ستوني پکې ډوب شو. د حمیرا جیلاني کورته د نجیب تګ راتګ د ګوند د غړو تر جدي نیوکې لاندې راغی. میر اکبر خیبر چې په میکرویانو کې د حاکم جیلاني د ماڼۍ په ګاونډ کې یې ژوند کولو له نېږدې ددغه کورنۍ ټولې اخلاقي فجایع لیدلې. چې دغه کورنۍ څه ډول له بې شرمۍ او فساد نه ډک ژوند کوي. نوموړي چې د دغه کورنۍ له کورنیو اخلاقو او له ګناه او دنائت نه له ډکې ماضي نه پوره معلومات لرل، پر نجیب یې له دغه کثافت پرورہ، او په ګناه لړلو عناصرو سره د اړیکو له وجې سختې نیوکې کولې. او خپلې اړیکې یې ور سره پرې کړې. نجیب په لومړي سر کې ځان کورنی ښوونکي ښودلو، چې ګواکې نورې هېڅ ډول اړیکې نشته، ولې څه وخت وروسته نوموړی د حاکم جیلاني د بې سویې، بې علمه، نالایقي، بې لارې او بدکاره، څېرې سینه لور په عاشق بدل شو. چې بالآخره دغه ښاغلی با ناموسه انقلابي. او غیرتي پښتون. له همغه معلوم الحاله بدکاره فتانه ( ساقي ) سره واده وکړ. او په شرمېدلي ژوند یې یوه بله د شرم پاڼه ور زیاته شوه.

له فتانې سره د نجیب واده یوه شرمنده ګي او بې شرمې وه. چې د ګوند دغړو تر منځ یې یو ځوړ را پورته کړ. د ګوند ډېرو غړو د نجیب ددې عمل پر وړاندې د خپلې کرکې او نفرت اظهار وکړ. میر اکبر خیبر ددغه خبښۍ په اړه خپل جدي غبرګون وښودلو. مګر ببرک کارمل د خپل مکارانه او فتنه ګر دریځ له مخې هم په میخ وار کولو او هم په بوټ. له یوې خوا یې د ګوند په سازمان کې د نجیب پر ضد پراخه تبلیغات کول، او له بلې خوا بیا له ډاکټر انس سره له فتانې سره د نجیب د نکاح پر دسترخوان ناست و. د کارمل د ګروپ د پراخه تبلیغاتو، نیوکو، سوالانو د زمزې له و جې نجیب تر دې بریده تر فشار لاندې راغی چې آخر ناروغ شو. او څو ورځې په مسلسل ډول په کور کې له سترګو پټ شو.

د یو څه وخت له تېرېدو وروسته یې د مصلحت لاره ونیوه، ببرک کارمل ته یې د تسلیمۍ غاړه کېښوده، چې د ببر کارمل سره په یو ځای کېدو په ګوند کې د کارمل د یوه فرمانبرداره او مطیع کس باندې بدل شو. او د میر اکبر خیبر له څنګ نه لیرې شو او د میر اکبر خیبر د مخالفینو له صف سره یو ځای شو.

نجيب چې کله فتانه د مېرمنې په توګه ومنله، څه هڅې يې و کړې چې د نوموړې د شخصيت تشې او کمياني ډکې کړي، مګر و نه توانېد. فتانه لنډه ونه او زيړې سترګې لري، د واده پر مهال خواره وه، مګر وروسته بيا چاغه شوه، ويښتان يې تور او سپين رنګې ده، فتانه داسې څوک نه وه چې څه کمې تشې دې ولري. د بدکارۍ او بد اخلاقۍ له پلوه يې اوږده سابقه لرله. هغه د ظاهر شاه په وخت کې له نجيب سره له واده مخکې، د شهر غلغله، ګولډن لوتس، او خم زرګر په نايټ کلبونو کې په مسلسله توګه ډول ډول نڅاګرۍ کولې. مايع چرس به يې څښل. او لغړه نڅا به يې کوله.

فتانه جيلاني زياتره د فتانه ساقي په نامه شهرت درلود او په همدې نامه يادېده. ځکه چې نوموړې به د شرابخورو عياشانو په محفلونو کې له شرابو ډک جامونه ويشل. او شهوت پرستو سړيو نوموړې د ساقي په وياړ نازولې وه.

فتانه به له ډېرو سړو سره همبستره کېده، او خپل نا مشروع حملونه به يې د خپل اکا جلال جان او د مستورې په کورونو کې چې د جلال اکا لور يې وه، سقط کول. دا څه د درواغو نکل نه دی، بلکې واقعيت دی. فتانې د آذر خياط له زوی عبد الله آذر سره ناروا جنسي اړيکې لرلې، تر دې چې عبد الله غوښتل له نوموړې سره واده وکړي، مګر پلار يې له دا ډول واده سره کلک مخالفت وکړ، او پرې يې نښود چې زوی يې عبد الله فتانه د مېرمنې په توګه ومني. فتانې چې له عبد الله نه نا روا حمل اخيستی و، بالآخره يې د مستوره جلال په کور کې سقط کړ. دا سقط کول د فتانې د ورځني ژوند برخه ګرځېدلي وو. کله چې د زرغونې په ښوونځي کې په تحصيل لګيا وه، د هوسبازو جينکو او هلکانو له يوې ډلې سره باميانو ته تللې وه، يوه هفته ورکه وه، دې پېښې د ښوونځي په چاپيرېال کې لوی ځوږ جوړ کړی و. هغه نجونې چې فتانې له ځان سره باميانو ته بيولې وې، د هغوی کورنيو د ښوونځي ادارې ته له نوموړې نه شکايت وکړ، د ښوونځي ادارې له وزارت معارف نه د لازمو قوانينو په اخيستو سره نوموړې د يوې بدنامې او بد اخلاقه نجلۍ په نامه له ښوونځي نه وشړله. خو دا چې حميرا جيلاني د ډاکتر انس خور وه، دوباره واسطه شوه، او له خپل نفوذ نه په استفادې سره خپله په فساد لړلې لور يې بل ښوونځي ته تبديله کړه. تر څو هلته يو څو ورځې خپل له فساد او فتنې نه ډک ژوند ته ادامه ور کړي. فتانه په متواتر ډول د ناکامېدو په نتيجه کې د خپل بشپړ نالايقتوب له وجې له يوولسم ټولګي نه وشړل شوه. دا ځل د خپلې بدکاره کورنۍ په غېږ کې په پوره او بشپړه آزادۍ سره خپل بدنام کسب ته ادامه ور کړه. فتانه له

ښوونځي نه له شړل کېدو وروسته د معارف وزارت په يوه څانګه کې د ټايپستي په توګه مقرره شوه. کله چې يې له نجيب سره کوزده وشوه، د نوموړې په وسيله يې له نعمت الله پژواک چې د محمد داود د رياست جمهورۍ په وخت کې د معارف وزير و، د وزير داخله فيض محمد په سفارش د جعلي شهادتنامې امر تر لاسه، او د دولسم ټولګي فارغ التحصيله او بکلوريا پاس شوه.

نجيب چې د طبقاتي مبارزې او ور سره نه پخلا کېدونکي تضاد دعوا يې لرله، له فتانې سره په واده کولو د سلطنتي دربار د مفسدينو محفلونو ته ور نېږدې کېدو. او طبقاتي پخلاينه به يې کوله، تر دې چې دشيرين خورۍ په شپه د کابل په هوټل کې د حميرا سراج او فتانه جيلاني ولي نعمت مارشال شاه ولی خان دښاغلي انقلابي؟ د کوزدې ګوته له بدکاره نڅاګرې فتانه ساقي سره تبادله کړه.

آفرين د ښاغلي انقلابي په حال چې نه يې په تېر کې اخلاق او پاک ضمير در لود، او نه په اصطلاح دخپل انقلابي ژوند په دوران کې. چې فتانه جيلاني له خپل ټول فسق او فجور سره پرې ور علاوه شوه.

له فتانې سره د نجيب له واده وروسته او د ببرک کارمل په وړاندې د نجيب له په ګوندېو کېدو وروسته په ګوندي حلقاتو کې د نجيب او مېرمنې پرضد يې تبليغات کم شول. خو له دې سره سره نجيب و نه توانېد چې د فتانې هغه پېژندنه چې په ټولنه کې يې پرېښې وه له منځه يوسي. په ورځو ورځو به نجيب ددغه بد کاره او هرجايي ښځې له وجې له خلکو سره لاس او ګرېوان او په جګړه به اخته و. له غنضفر سره چې د نجيب يو سياسي رقيب و، د جنګ اودعوې خبره دې حد ته ور سېده چې دنوموړي دوسيه د کابل ولايت د امنيه قوماندانۍ د قتل و جرح آمريت ته ورسېږي، مګر د موسی شفيق په حکومت کې د نيک محمد د نفوذ په وسيله دوسيه بيرته وتړل شوه، او مسله همدلته پای ته ورسېده.

نجيب بل ځل بيا، د محمد داود د جمهوريت د جشن د مراسمو په ورځو کې چې له ۱۳۵۶ د سرطان له ۲۶ سره يې سمون درلود د عبد العزيز خان لندني له لمسي عبد الله سره بله دعوه او جنجال را پورته کړ . او هغه داسې چې عبد الله له فتانې ساقي سره د خپلو عشق بازيو يادونه د نجيب پر مخ ور ويشتلې وه. او نجيب ته يې د يو بې غيرته او بې ناموس عنصر خطاب کړی و. دغه موضوع

د لوی جنګ او جنجال لامل شوه، تر دې چې عبد الله د اووم ثور له کوده تا وروسته د نجیب د غچ اخیستنې له ویرې له هېواد نه بهر وتلو ته مجبور شو. پیغوونو او طعنو نجیب په ځانګړي ډول د سیاسي رقیبانو له خوا دېته اړ ایسته چې له فتانې سره خبرې غبرګې را غبرګې کړي او تر منځ یې ټکر راشي.

په ۱۳۵۲ هـ ش د چنګاښ په ۲۶ نېټه د محمد داود کوده تا چې د خلقیانو او پرچمیانو په ګډون او هڅو ترسره شوه، په ملکي او نظامي برخو کې د د خلقي او پرچمي سازمانونو لپاره د پرمختګ او انکشاف ډېره ښه زمینه شوه، پلار مې له محمد داود سره د مخکني شناخت له مخې بیا په پېښور کې د افغاني تجارانو د وکیل په توګه وګومارل شو، دا د نجیب لپاره یو طلایي چانس و چې په برخه یې شو، نجیب د پلار له عوایدو نه په استفادې سره په بې غمه زړه له فتانې سره خپل میکروبي ژوند پر مخ وړلو. له ټولو پښتني، انقلابي؟ او مدني اصولو څخه لیرې په بشپړه بې غیرتۍ سره د فتانې تر څنګ پروت و. نجیب په خورا بې شرمۍ سره چې دده خوی دی، فتانه یوه معصومه او با اخلاقه ښځه معرفي کوله. او هڅه به یې کوله چې په دې توګه د نوموړې له ګناهونو، شرارت، فساد او شیطانت نه ډک ژوند پټ کړي.

پلار مې هم چې د فتانې په هکله یې پوره معلومات لرل، د فتانې په اړه به یې د نجیب خبرې تاییدولې. او به احمقانه توګه به یې فتانه په اصطلاح د پښتنې کورنۍ ننګ او ناموس ګڼله. اوهر چا به چې د فتانې په اړه حقیقت ویلو په ده به بد لګېدو. له هغه سره به یې مخالفت کولو او اړیکې به یې ور سره پرې کولې.
په تاسف سره باید وویل شي چې نوموړي د ننګ او ناموس سپېڅلي مفاهیم نه وو درک کړي، او دهغو په ارزښت نه پوهېدو. هېڅکله یوه بدکاره نشي کولی چې د یوې مسلمانې، یوې افغانې، او یوې داسې کورنۍ ننګ او ناموس وګرځي چې بنسټ یې پښتونېزم وي. د افغان مسلمان ولس د هر قوم په منځ کې، همدا ډول د پښتنو قبایلو په منځ کې هېڅکله د فتانې په څېر یوه بې ننګه او بې عزته فتنه نه شي را پیدا کېدی.

په اصل کې د افغانستان د ټولو قومونو په منځ کې چې هر څوک د فتانې په څېر د بدو اعمالو مرتکب وګرځي، د مرګ لایق ګڼل کېږي او په خپله سزا رسول کېږي. مګر پلار مې ړوند شوی و، د فتانې په بد اخلاقیو او فسادونو یې

سترګې پټولې. نوموړي به هر وخت د غيرت خبرې کولې. خو له نجيب او مېرمنې څخه يې په خپل ملاتړ سره هر څه وبايلل.

پلار مې چې کله په پېښور کې دنده تر سره کوله، د محمد داود او پښتونستاني ملګرو تر منځ يې رابط و، د محمد داود له دغه اعتماد نه يې ناسمه استفاده کوله. په ګڼو بانو مانو به يې ډېرې زياتې پيسې خپل جيب ته اچولې. پر دې سر بيره نوموړي به د نجيب په مشوره له تجارانو څخه بډې اخيستې.

پلار مې د څو دليلونو له مخې د رشوتخورۍ او سوء استفادې په برخه کې د نجيب لارښوونو ته اړتيا ليدله، پلار مې بې زړه و، مګر نجيب يوه ذره هم د قانون ضد کړنو له تر سره کولو نه يرېدو. له دې پرته، نجيب پوهېدو چې پلار د دولت مامور او د خپلو کړنو مسول دی، نه دی؛ ځکه خو د نجيب مشورې او مداخلې خپله د نجيب لپاره بې کاره پايلې نه درلودې. نجيب پيسو ته اړتيا لرله، او غوښتل يې د پلار له لارې په هر ډول چې کېږي، مفتې او بې سترېا پيسې لاسته راوړي. پلار چې د نجيب په واسطه له اختلاس او د بډو اخيستو له لارې د نجيب د مشورو په نتيجه کې کومې پيسې تر لاسه کولې، يوه برخه يې له حاجي سحر ګل او حاجي ضراب ګل سره چې په هزاربزو مشهور وو، او د تجارت کسب يې کولو اېښودلې. يوه برخه به يې نجيب د خپل عيش او عشرت لپاره لوټلې، که به نجيب ډېرې پيسې نه تر لاسه کولې، د ده او مېرمنې تر منځ به يې جګړه پېښېده. او له پلار سره به مې د نجيب مناسبات خرابېدل. حميرا سراج هم په خپل ځانګړي مکر سره پلار او مور ته مې دوکه ور کوله، او د غوړه مالۍ او چاپلوسۍ له لارې به يې پيسې ترې شکولې.

نجيب له دولسو کلونو وروسته د طب پوهنځي پای ته ورسوله، له عسکري خدمت وروسته، د بالامرغاب په روغتون کې د خپلو نمرو مطابق په دنده وګومارل شو، مګر ده نشوای کولی چې د کابل د مکرويانو د عيش او عشرت آسوده او مفت ژوند د شمال د بيچاره خلکو د خدمت لپاره پرېږدي. د کمونيزم او روس له خدمت نه سترګې پټې کړي. د هر ډول ملي، وطنپالنې، غريبپالنې او خواخوږۍ له احساس نه بې برخې هلته يې له تګ نه انکار وکړ. د ډاکترۍ له دندې چې دده له شخصيت او ټيپ سره برابره نه وه استعفا وکړه، د خپل ګوند په منځ کې خپل دايمي کار او د کمونيستي عقيدې په خپرولو يې لاس پورې کړ .

نوموړی به هر ژمی د چکر لپاره له خپلي مېرمني سره پلار ته مې پېښور ته ورتللو. په دې وخت کې د کي جي بي فعال غړي شاه محمد دوست چې د افغانستان له اشغال نه وروسته د بهرنيو چارو وزير مقرر شو، په پېښور کې د قونسل په توګه دنده تر سره کوله. نجيب له دوست او دکورنيو چارو له وزير فيض محمد سره د پاکستان د کيڼ لاسو ګوندونو، او د پاکستان د کمونيست ګوند په منځ کې د صوبه سرحد په قبايلو او بلوچانو کې سياسي کار پر مخ وړلو، له دې وروسته به بيا هند ته تللو، هلته به د هند له کمونيست ګوند سره په تماس کې کېدو، هند له همغه وخت راهيسې د نجيب او کي جي بي تر منځ رابط و، نجيب په همدې کلونو کې د کي جي بي غړيتوب تر لاسه کړ، د قبايلو او صوبه سرحد په منځ کې يې هم د روس او هم د ځان په ګټه ډېر ښه کاروبار تر سره کړ.

نوموړی تر ننه پورې دخپلو همغو کارونو مېوه خوري، د شوروي بادارنو له خوا د کارمل په پرتله نجيب ته ترجيح ورکول همدا د نجيب د پښتونيزم مسله، د پاکستاني او هندي ټولنو ژوره پېژندنه، د پاکستان په دننه کې د قومونو او قبيلو تر منځ تفرقه اچول، د پاکستان د کيڼ لاسو ګوندونو مشران تطميع کول د نجيب د سياست ځانګړنې دي .

کله چې محمد داود د سياسي وجوهاتو له مخې په ۱۹۷۷ کې خپل دريځ نوی کړ، او غوښتل يې چې يو بل لوری ونيسي، شوروي اتحاد د خپل توسعه طلبي او تفوق طلبي خاصيت له مخې نه غوښتل چې افغانستان مستقل هېواد وي او د ناپيلتوب خپلواک سياست پر مخ يوسي. بريژنيف چې د شوروي د کمونيستي ګوند په سر کې يې قرار درلود، د محمد داود نوی تمايل يې د شوروي اتحاد د ګټو لپاره ګواښ وګڼلو، او تصميم يې ونيولو چې د خلق او پرچم ډلې چې د شوروي د ګټو د خونديتوب مخکني مزدوران وو، سره يو کړي، او ددوی په واسطه هغه کرغېړن پلان چې د افغانستان د سياسي برخليک لپاره يې طرح کړی و پلی کړي .

د ۱۳۵۶ هـ ش کال د چنګاښ په مياشت کې د خلقيانو او پرچميانو د مرکزي کمېټې د ګډې ناستې په دايرېدو سره د خلق ديموکراتيک ګوند د بيا يووالي اعلان وکړ، او خطر زنګونه وکړنګېدل. په نوې مرکزي کمېټه چې له ګډې ناستې وروسته منځ ته راغله ديرش کسان شامل وو، چې له دواړو ډلو نه په مساوي توګه پنځه لس پنځه لس کسان ټاکل شوي وو .

نور محمد تره کی د عمومي منشي او ببرک کارمل د ګوند د دوهم منشي په توګه وټاکل شول، نجیب هم له ټاکل شوې ناستې وروسته په مرکزي کمېټه کې غړیتوب درلود. نوموړي په عین وخت کې د کابل ښار د کمېټې د منشي په توګه هم دنده تر سره کوله .

د ۱۳۵۶ کال په ورستیو کې د زرجان په نامه د یو خلقي له خوا د پلان د وزیر علي احمد تروروول د دیموکراتیک خلق د ګوند او د شوروي د کرغېړنو نیتونو ښکاروندی او ثابتوونکي وو، چې غوښتل یې نا امني او سیاسي بې ثباتي رامنځ ته کړي، او بیا د سیاسي ثبات د نه شتون په بهانه په کودتاه لاس پورې کړي. د داود رژیم را وپرځوي او د چارو واګې په خپل لاس کې واخلي.

زرجان د ماسپښین شاوخوا د پلان د وزیر د قلم مخصوص مدیریت ته لاړ، او له خرم سره د لیدو غوښتنه یې وکړه، په دې وخت کې خرم د جاپان له یوه رسمي پلاوي سره لیده کاته درلودل، زرجان نوموړی د توپانچې په زور د لېدو کتو له خونې څخه را بهر کړ، د پلان وزارت له ودانۍ نه یې بهر وویست، او بیا یې د وزارت د دروازې په خوله کې د توپانچې په ډزو ووژلو. او خپله وتښتېد.

ددغه کودتاه د پیښېدو او د دیموکراتیک خلق د ګوند د پلان په اړه دشوروي په سفارت کې نور محمد تره کي په یوه بلنه کې د هغو خبرو په ترڅ کې چې د افغانستان د نفوس شمېرنې او احصایې د سریزو په هکله ( چې په ۱۳۵۶ کال کې د محمد داود د جمهوري دولت لخو ا یې پلان طرح شوی و ) د مرکزي احصایې رئیس عبد الکریم حکیمي ته یې داسې وویل: ( دا سرشمېرنه به هېڅ کله تر سره نشي(

دحزب دیموکراتیک خلق د رهبرۍ د پلاوو غړي ښه پوهېدل چې څه پلان به تر سره کیږي. او څه به پېښیږي. د ۱۳۵۷ کال په پسرلي کې د شوروي د کې جي بي سازمان د توطیې پر اساس میر اکبر خیبر ترور شو. باید پوښتنه وکړو چې روسانو ولې نوموړی ووژلو؟ ځکه چې نوموړی ددې سخت مخالف و چې دحزب دیموکراتیک خلق دې سیاسي واک تر لاسه کړي او هغه هم د کودتاه له لارې. نوموړی په دې اند و چې ګوند لا تر اوسه د واک د لاس ته راوړلو او ساتلو لپاره وړ تیاری نه لري؛ ځکه چې ګوند د افغانستان د اکثریت

خلکو له ملاتړ او ساتنې څخه برخمن نه دی. او یوازې د بین المللي ځواکونو ( د شوروي ملاتړ ته اشاره ده ) په ملاتړ تکیه نشو کولی. نوموړي د مارکسیزم د دکتورانو په څېر د خلکو ملاتړ له انقلابي واک نه لوړ ګڼلو.

مګر شوروي اتحاد او دګوند درهبرئ پلاوو غړو په هغه وخت کې دا ډول نظریات مردود ګڼل، بر دې سر بېره روسیې داسې یو فلز غوښت چې د هغه په واسطه د حزب د یموکراتیک خلق له لارې د پرچمیانو او خلقیانو تر منځ وحدت ونښلوي.

دغه فلز باید پخلاینه بله کړې وای. تر څو د داود د رژیم پر ضد د ګوند د غړو د تحریک انګېزه علني شي، له دې مخکې د کي جي بي ماشین غوښتل د ګوند په اړه دګوند د مشرتابه او غړیو ثبات او استقامت، او د ګوند د مشرتابه لپاره د غړیو اطاعت وآزمایي. په مستقیم ډول د ګوند دمشرتابه او غړیو د راغونډولو علني کول، او په یو نازک وخت کې د ګوند په مشرئ د یوې لویې غونډې رهبري کول د کي جي بي د ماشین له نورو موخو څخه وو .

خیبر په مرموزه توګه ماښام مهال په هغه سرک باندې چې له انصاري واټ نه جلا کېږي او ددولتي مطبعې په لوري ځي ووژل شو.

د نوموړي وژل ددې باعث شول چې د محمد داود حکومت او د دیموکراتیک خلق ګوند یو له بل سره ښکر په ښکر شي، په دې حال کې ګوند خپلو ټولو نظامي سازمانونو ته د تیار سی امر کړی و، د ګوند د رهبرئ پلاوو د میر اکبر خیبر ترور د افغانستان د تاریخ د تحول نقطه وبلله، او هغه یې د خاموشئ د شکست پیل او د حرکت چینه اعلان کړه.

ګوند د میر اکبر خیبر مړی د څو زره نفري لاریون په بدرګه د شهدای صالحینو په هدیره کې ښخ کړ، او په همغه ځای کې د ګوند سیاسي سند چې د ګوند د راتلونکي دریځ او نیتونو څرګندونه یې کوله د ببرک کارمل له خوا ولوستل شو، او د محمد داود حکومت ته د زور آزمایلو چلنج ور کړل شو.

یوه ورځ وروسته، یعني د غوایي په شپږمه، یوه دولتي اعلامیه د رادیو افغانستان له لارې خپره شوه، په همدې ترتیب رسما اعلان وشو چې نور محمد

تره کی او ببرک کارمل له یو څو ملګرو سره یې ګرفتار شوي او محاکمه به شي.

د سبا ورځې په سهار ( دغوايي اوومه ) د افغانستان تاریخي تراژیدي پیل شوه. د غوایي د اوومې کودتاه تر سره شوه، د اسلم وطنجار د ټانک په ډز سره توروالی او تیارې، استبداد او وحشت، انسان وژنه او جنایت پیل شول. ولسمشر محمد داود، ورور یې محمد نعیم او د کورنیو غړي یې چې په کابل کې وو، او همغه د کودتاه په شپه په ارګ کې سره غونډ شوي وو، ټول د پرچمیانو او خلقیانو په واسطه په بې رحمۍ سره ووژل شول. ان چې وړو ماشومانو یې هم خپل خوږ ژوند له لاسه ور کړ.

د یموکراتیک خلق ګوند له نامشروع لارې سیاسي واک غصب کړ، او په نړۍ کې یو بل دولت د د توسعه طلبه شوروي اتحاد د سیمه ایزو ګټو د ساتنې او پیره دارۍ د چوپړیانو په حلقه کې ور اضافه شو. د افغانستان خپلواکۍ او حریت رنګ و بایللو، د کمونیزم د انقیاد زنځیر زمونږ د ملت د ژوند د تمامیت له ځمکې را تاو شو.

کودتاه چیانو د خپل حکومت د انقلابي شورا د غړیوکابینه اعلان کړه، نور محمد تره کي د انقلابي شورا د ریاست او د صدر اعظمۍ چوکۍ ونیوې. ببرک کارمل د دواړو پوستونو د معاون په توګه، یعني د انقلابي شورا معاون، او د صدر اعظم معاون وټاکل شو. مګر دغوايي دغه خونړۍ کودتاه او د پرچمیانو او خلقیانو ګډ برخلیک چې د روسانو په واسطه ټاکل شوی و، د ګوند ددغه دوه ډلو ترمنځ واقعي یووالي تامین نشوای کړای. ظاهرا د د ولت درئیس او د صدر اعظم په توګه د تره کي ټاکل کېدل چې خلقی و، او په دواړو چوکیو کې ببرک کارمل د معاون په توګه، باید د خلقیانو او پرچمیانو د قناعت وړ ګرځېدلي وای، او ددواړو ډلو تر منځ یې باید په دولت کې موازنه ساتلې وای، مګر عملا داسې ونه شول. څو ورځې تېرې نه شوې چې بیا هم د نوي واک ته رسېدلې ګوند د ډلو تر منځ کورنې اختلافات را څرګند شول. حفیظ الله امین د خلقیانو د استازي او سرکرده په توګه د کودتاه د فرمان د صادرولو د ادعا پر اساس په ببرک کارمل او پرچمیانو بریدونه او غورځنګونه پیل کړل. د ورځو په تیرېدو سره د خلقي او پرچمي ډلو تر منځ د ګوند د مرکزي کمېټې او انقلابي شورا په د ننه کې درز زیاتېدو، ببرک کارمل د کمزوي وضعیت په لوري وو، حفیظ الله امین د نجیب او وکیل چې دواړه له پرچمي ډلې څخه وو، او د

مرکزي کمېټې غړي وو د برطرفۍ غوښتونکی شو، نوموړي په دې اړه نور محمد تره کي ته د انقلابي شورا په ناسته کې یو یاد داشت ور کړ چې د بحث لپاره مطرح شو.

په یاد داشت کې راغلي وو چې نجیب د کابل ښار د کمېټې د منشي په توګه د ګوند د ملکي غړو په منځ کې د خپلې ډلې په ګټه فعالیت کوي، اوعبد الوکیل د نظامي غړو تر منځ همدا کار تر سره کوي؛ ځکه باید دوی توبیخ شي او د فریکسیون بازۍ او ډلبازۍ د فعالیتونو له وجې باید له هېواد نه بهر ته لاړ شي. او د سفیرانو په توګه وګومارل شي. نوموړي انقلابي شورا ته یو بل پېشنهاد وسپارلو، چې د انقلابي شورا غړیتوب ته له خلقي ډلې نه د یوولسو کسانو د ور زیاتول په اړه و. ببرک کارمل پوهیدو چې په انقلابي شورا کې د خلقیانو په زیاتوالي سره د ده موقف کمزوری کېږي، نو له همدې کبله یې له نوموړو پېشنهادونو سره ډاګیزمخالفت وکړ. دغه زیاتوالي په انقلابي شورا کې د نظرونو تناسب سره ګډوډولو. ببرک کارمل د پورتنیو ملاحظاتو او په انقلابي شورا کې د موقف دکمزورتیا په نظر کې نیولو سره چې پایله به یې له کار او ګوند نه دده لیري کېدل او سقوط و، تصمیم ونیو چې د انقلابي شورا ناسته پرېږدي. نوموړی له خونې نه بهر شو. ( چېرته ځې؟ ) سید محمد ګلاب زوی چې هغه مهال د نور محمد تره کي د ګارد مشر و، له نوموړي نه یې پوښتنه وکړه.

کارمل: ( بهر ته. زه نشم کولی ددې موضوع په اړه په تصمیم نیولو کې ګډون وکړم )

ګلاب زوی خپل ماشیندار د تهدید په توګه له اوږې را وایست، په لاس کې یې ونیو. په داسې حال کې چې د ټوپک شپېلۍ یې د ببرک کارمل لوري ته ور واړوله ویې ویل: ( سمدستي دانقلابي شورا جلسې ته را وګرځه. په رای ګیرۍ کې برخه واخله. یا مخالفه رایه ور کړه او یا موافقه. ).
ببرک کارمل یې چوکۍ ته را وګرځېد. خو دا ځل یې یو بل نوی تکتیک په کار واچولو. نوموړي وغوښتل تر څو ده ته، وروڼو یې محمود بریالي ته، نور احمد نور، وکیل، نجیب او ډاکترې اناهیتا راتبزاد ته د سفارتونو چوکۍ ور کړل شي. او موافقتنامې ( اګریمانونه ) یې دې راوغوښتل شي.
نور محمد تره کي او د انقلابي شورا نورو غړیو له دې وړاندیز سره هوکړه وکړه، او داکثریت له مخې پرېکړه وشوه چې نوموړي کسان دې په ایران،

بریتانیه، پاکستان، چکوسلواکیا، یوګوسلاویا او دامریکې په متحده آیالاتو کې د سفیرانو په توګه وټاکل شي.

یوه میاشت وروسته یې په نوبت سره له نوموړ هېوادونو څخه اګریمانونه را ورسېدل، هر یو د نوموړو سفارتخانو په لور و روان شو، نور احمد نور امریکې ته، نجیب ایران ته، وکیل انګلستان ته، بریالی پاکستان ته، ببرک کارمل چکوسلواکیا او اناهیتا یوګوسلاویا ته لاړل.

مګر ببرک کارمل کرار کېنناست. دی پوهېدو چې په افغانستان کې واقعي واک د چا په لاس کې دی. چا ته باید ور شي او شکایت ور ته وکړي. د انقلابي شورا له پرېکړې وروسته نوموړی نبغ په کابل کې د شوروي اتحاد سفارت ته لاړو، او د روسیې له سفیر پاپوزانوف سره یې ملاقات وکړ.

ببرک نوموړي ته د ټولو مسایلو او موضوعاتو ګزارش ور کړ، او د شوروي د ملاتړ او مرستې غوښتونکی شو. نوموړي حفیظ الله امین د ګوند د یووالي ضد، ډلباز او ډله خوښوونکی کس و بللو.

پوزانوف چې خپله لوی شیطان و، او شخصا یې هم ببرک کارمل، هم تره کی او هم امین پېژندل، او د خلق او پرچم له ذات البیني اختلافاتو نه خبر و، په طبیعي ډول یې نه غوښتل چې د کابل د کمونیستي حکومت دکار په دې لومړۍ مرحله کې چې د څواکمنې او واکمنې ډلې یعني تره کي او امین د خپګان لامل وګرځي په ښکاره توګه مداخله وکړي؛ ځکه خو په داسې حال کې چې نوموړي د ببرک کارمل خبرو ته په پوره زغم سره غوږ ونیو، له نوموړي سره یې هېڅ مرسته ونه کړه، او مشوره یې ور کړه چې د خپل سفارت په لوري و خوځېږي. اوخپله دنده تر لاسه کړي.

ددې مشوره په پایله کې چې په حقیقت کې یو پرېکنده حکم و، نه ببرک او نه کوم بل ګوندي کولی شوای چې سرغړونه ورڅخه وکړي، نور ملګري یې هم د خپلو سفارتونو د چوکیو تر لاسه کولو لپاره دوستو هېوادونو ته په حرکت کې شول. کارمل د خپل نوي ماموریت په لوري د سفر پر مهال بیا هم له یوې نوې حیلې نه کار واخیست. نوموړی په مسکو کې د یوې میاشتې لپاره تم شو. داتحاد شوروي له مختلفو چارواکو سره یې مسایل له نېږدې په هغه توګه مطرح کړل چې زړه یې و. طبعا په دې مسایلو کې د خلقیانو او پرچمیانو اختلافات، د تره کي او امین مشرتوب. انقلابي شورا او جوړښت یې، د کمونیستي حکومت د کار طریقه او اجراءات. د ګوند، په ځانګړي ډول د ده خپل او دنورو پرچمیانو راتلونکی برخلیک پکې شامل وو. ببرک کارمل د خپلو خبرو له پای ته رسېدو وروسته چکوسلواکیا ته د خپلې دندې د تر لاسه کولو لپاره روان شو.

ببرک وروسته له هغه چې د نور محمد تره کي د مرستیالۍ له دندې ګوښه کړل شو، مخکې له دې چې د مسکو او چکوسلواکیا په لوري روان شي، په یو لړ پټو فعالیتونو یې لاس پورې کړ. تر څو یوه نوې کودتاه برابره کړي، تره کی او امین د خلق له ډلې سره، له واک نه لیرې کړي، او خپله د حکومت واګې په لاس کې واخلي. نوموړي ددفاع له وزیر جنرال قادر، د پلان وزیر سلطان علي کشتمند، د ټولګټو وزیر محمد رفیع، او د وسلوالو ځواکونو لوی درستیز جنرال شاهپور خان احمدزي سره خبرې کړې وې، تر څو د سرور منګل، نجم الدین کاویاني او د پرچم ډلې د نورو ملکي فعالینو په مرسته د لوی اختر په ورځو کې نظامي کودتاه پلې کړي، د نور الامین ( نور محمد تره کي او حفیظ الله امین ) دولت له منځه یوسي.
مګر د هغوی ټول فعالیتونه د تره کي او امین تر څارنې لاندې وو. وروسته له هغه چې کارمل او انډیوالان یې له کابل نه لاړل، او خپلې دندې یې تر لاسه کړې، د تره کي حکومت ددې خبر د خپرولو په فکر کې شو، د ۱۳۵۷ دزمري په میاشت کې یعني له کابل نه د ببرک کارمل له تګ یوه نیمه میاشت وروسته، او د مسکو دسفر له پای ته رسېدو دوه اونۍ وروسته د کابل د رسنیو له لارې د کشتمند، قادر، رفیع او جنرال شاهپور د نیول کېدو او بندي کېدو خبر خپور شو. له هغه وروسته د هغوی اعترافونه په ورځپاڼو کې خپاره شول.
د نور الامین ( تره کی او امین ) حکومت، د یوې ځانګړې اعلامیې په ترڅ کې څرګنده کړه چې د نوموړ کسانو فعالیتونه له ډېر وخت راهیسې د اګسا سازمان ( د افغانستان د ګټو ساتونکې ادارې ) چې د نور الامین د کمونیست دولت د جاسوسۍ او د حالاتو د ریکارډ اداره ګڼل کېده، او اسد الله سروري یې سرپرستي کوله تر څارنې لاندې وو، د نوموړې ادارې جاسوسانو کشف کړې وه چې د ببرک کارمل ډلې غوښتل په کودتاه لاس پورې کړي او د نور الامین دولت د علمي سوسیالیزم له اصولو نه د کږېدنې په بهانه رانسکور کړي. په ورځپاڼو، جریدو، راډیویي او تلویزیوني رسنیو کې د سلطان علي کشتمند د اعترافاتو له خپرېدو، او د پرچمیانو د نیتونو له روښانه کېدو سره چې د ببرک کارمل تر مشرۍ لاندې یې فعالیت کولو د نور الامین حکومت له ګوندي او دولتي چوکیو نه د د پرچمیانو په پراخه تصفیې لاس پورې کړ. یو لوی تعداد یې ونیول او زندانیان یې کړل. د نور محمد تره کي تر مشرۍ لاندې انقلابي شورا ببرک او انډیوالان یې له انقلاب سره خیانت کوونکي. او د محاکمې وړ وګڼل. او د سفارتونو له دندو یې ګوښه کړل.
ددې پېښو په ترڅ کې حفیظ الله امین دنوي دولت د بهرنیو چارو د وزیر په توګه کیوبا ته سفر وکړ، او له فیډل کاسترو سره یې ملاقات وکړ، د بیرته لا

ګرځېدو پر مهال باید په ایران کې تم شوی وای، خامخا په هوایي ډګر کې به په ایران کې د سفیر او د افغان لوی سفارت د دیپلوماتیک ګروپ له خوا د نوموړي هرکلی کېدو.

په هغه وخت کې نجیب په تهران کې سفیر و، نوموړي د ترهګرو یو ګروپ مسلح کړی او تیار کړی و، تر څو د ایران په هوایي ډګر کې حفیظ الله امین ترور کړي. د اناهیتا راتبزاد زوی کانیشکا چې خپله په همدې ګروپ کې و، په دې اړه یې ددې کتاب لیکونکي ته داسې کیسه وکړه: ( حفیظ الله امین، د تهران په هوایي ډګر کې د تم کېدو پر مهال د هیلو او تشریفاتو پر خلاف، له طیارې څخه را ښکته نه شو، چې د ټولو د تعجب وړ و ګرځېد. او ترور تر سره نه شو. ولې را ښکته نه شو؟ آیا له دسیسې نه خبره شوی و؟ معلومه نه ده. زه او سرور چې د نجیب باجه او په هند کې سفیر دی، د ترور کوونکو په ډله کې وو (

د کشتمند او همکار ګروپ له نیولو وروسته، خپله د ببرک کارمل په شمول د شپږو سفیرانو د ګوښه کېدو مکتوبونه صادر شول. او ټول له خپلو دندو ګوښه کړای شول. د دوی د ګوښه کېدو په مکتوبونو کې راغلي وو چې دوی ټول د ګوندي محاکمې لپاره باید بیرته کابل ته راشي. مګر کارمل او انډیوالانو یې دغو مکتوبونو ته کوم ارزښت ور نه کړ او کابل ته را نغلل.

نجیب چې د ایران دسفیر په توګه یې دنده تر سره کوله، هم په همدې لړۍ کې له خپلې دندې ګوښه کړل شو، نوموړی مخکې له دې چې له تهران څخه لاړ شي، یوولس ملیونه ریاله چې مخکې، د مخکني سفیر زلمي محمود غازي له خوا د افغانستان د سفارت د ځمکې د پلورلو له درکه د ایران په بانکې د امانت په توګه اېښودل شوې وې. چور کړې. پر دې سربېره نوموړي د افغانستان د سفارت سامانونه، چې کوچونه، چوکۍ، مېزونه، دخوب کټونه، د ټایپ ماشینونه او نور یکې شامل وو لیلام کړل. پیسې یې په خپله جیب کې واچولې، او له خپلې نځاګرې میرمنې سره یو ځای د یوګوسلاویا په لوري وخوځېد. هلته له نورو غلو، یعنی لېرې کړای شوو سفیرانو سره یو ځای شو. ببرک کارمل، اناهیتا، نور احمد نور، محمود بریالی او عبد الوکیل ټول هملته سره یو ځای شول، او له سفارتونو څخه په تښتول شویو پیسو یې له عیش او عشرت نه ډک اشتراکي ژوند ته مخه کړه. تر څنګ یې نورو وړو وړو انډیوالانو د دوی د ښه چوپړ او پنډوکیو د وړلو لپاره ځانونه هلته ور ورسول، د مرغومې د شپږمې نېټې له پېښې وروسته ددوی  هر یو د پنډکیو د وړلو له وجې په سفارتونو کې په دندو و ګومارل شول. زمان قطب یار، چې بیا

وروسته د ختيځ آلمان سفير شو، عنايت سادات، غلام او زلمی شهباز له همدې ډلي څخه وو.
نجيب چې تر ټولو زياتې د سفارت پيسې يې غلا کړې وي، په يو ګوسلاويا کې د هستوګنې پر مهال يې د " هلنابايو " په نامه يوه ښکلې معشوقه چې مور يې يو ګوسلاويايی او پلار يې جرمنی و، پيدا کړې وه، نوموړې په همدې غلا کړيو پيسو دهلنابايو په نامه يو هوټل وپېرلو. هلنا لوړه ديرش کلنه ښځه وه، سترګې يې مې رنګې، وتلې پزه، وتلې او کلکې شهواني سينې يې لرلې، لومړی يې د نجيب د موټروانې په توګه کار کولو، له لوړ پوندو بوټانو سره به يې نازک او وريښمنې جامې اغوستې، تر څو د بدن غړي يې ښه روست ښکاره شي. کله چې فتانه چې خپله به تر نيمو شپو د بدکاريو په مرکزونو کې ورکه وه، له هلنابايو سره د نجيب له اړيکو، او په بلګراد کې د هغې په نامه د هوټل له پېريدلو خبره شوه، سخت غبرګون يې وښود. د عشق خبره جنجال ته سره ورسېده. نجيب خپله مېرمنه په سوټې ووهله. په دې ترڅ کې نور احمد نور او محمود بريالی چې له فتانې نه يې دفاع کوله هم د نجيب د وهلو ټکولو وړ وګرځېدل. د اخ وډب پر مهال د بريالي عينکې له سترګو ولوېدې او ورکې شوې. د جنجال لمنه پراخه شوه. تر دې چې د يوګوسلاويا پوليس او د کي جي بي مامورين مداخلې کولو ته مجبور شول. نجيب او محمود بريالي د لوېديځ آلمان او انګليستان په لوري وتښتېدل.
د نجيب دوهمه لور، په يوه معيوبه او فلج شوې ښه د عملياتو ( سزارين ) له ستونزو سره په لويديځ آلمان کې وزيږېده. د ماشوم د معيوبوالي لامل يې د مور له خوا د شرابو څښل. او د مايع چرسو څکول وو... د شوروي حکومت د فرانسې د کمونيست ګوند له لارې نجيب او فتانه فرانسې ته ولېږل. نوموړو خپله عيبجنه ماشومه فرانسې ته له ځان سره بوتله، او د هغه ځای په يوه روغتون کې نوموړې ماشومه د دوه کلونو لپاره بستر پاتې شوه. لګښتونه يې د فرانسې د کمونيست ګوند له خوا ور کول کېدل. نجيب هم د نوموړي ګوند له ملاتړ نه برخمن شو.
د ۱۹۷۹ م کال د سپتمبر په لسمه نېټه نور محمد تره کي د کيوبا په هاوانا کې د بې پرې هېوادونو د دولتونو او حکومتونو د مشرانو په شپږم کنفرانس کې له ګډون کولو وروسته کابل ته د بيرته را تګ پر مهال مسکو ته لاړو، او له ليونيد بريژنف سره يې ملاقات وکړ. په کابل کې حفيظ الله امين دې نتيجې ته ور سېد چې رقيب يې تره کي له روسانو سره دسيسه جوړه کړې ده تر څو دی له منځه يوسي. څلور ورځې وروسته، يعني د سپتمبر په څوارلسمه نېټه په کابل کې د شوروي سفير الکسندرپوزانوف په يوه ناسته کې هڅه وکړه تر څو دغه

دوه خلقیان سره پخولا کړي، مګر د مناقشې په ترڅ کې چې نوره هم سختېده، ډزې وشوې. او تره کی سخت ټپي شو. ځینې وایي چې تره کی د ګارد ددوو کسانو له خوا زندئ شو. په هر صورت د تره کي له مرګ نه وروسته امین واک تر لاسه کړ.
د شوروي حکومت ته امین د منلو وړ نه و. ددې لپاره چې د نوموړي د له منځه وړلو پلان جوړ کړي، شوروي بیا هم خپل ژمن غله له یوګوسلاویا، فرانسې، لویدیځ المان او انګلیستان څخه مسکو ته را وغوښتل. او د امین د ورکولو پلان یې جوړ کړ. نور احمد نور او عبد الوکیل کابل ته راغلل. ببرک او اناهیتا په تاشکند کې منتظر شول. نجیب او محمود بریالی په مسکو کې پاتې شول.
په دې وخت کې نجیب د اندروپوف په یوه میلمستون کې چې د کي بي جي رئیس و اوسېدو، اندروپوف ژمنه ور سره وکړه چې په موقع سره به یې د ببرک کارمل ځای ناستی جوړوي، او دی باید مناسبه تیاري او وړتیا له ځانه وښیي. نجیب د شوروي وروستني غلام زمونږ د هېواد د اشغال په لومړنۍ اونۍ کې په مصونه توګه له مسکو نه کابل ته را ورسېد. او د جهنمي خاد چوکۍ چې وار له مخکې یې د روسي بادرانو له خوا ورته ټاکل شوې وه، ونیوله. نجیب د خاد په جوړلو سره د شوروي را صادر شوي دولت ته لا نور استحکام ور په برخه کړ.
زمونږ د هېواد له اشغال نه وروسته د روسانو د پروپاګندو او تبلیغاتو ماشین په ټوله نړۍ کې په پراخه تبلیغاتو لاس پورې کړ، او اعلان یې وکړ چې ګواکي د افغانستان ځمکنۍ بشپړتیا د پاکستان، امریکې او چین له خوا له ګواښ سره مخ وه، امریکایي او چینایي سرتېري د افغانستان په دننه کې د دې هېواد د قانوني دولت ( چې هغه خپله روسانو ورک کړ ) پر وړاندې جنګېږي، له همدې کبله مونږ خپل نظامي ځواکونه د انټرناسیونالیستۍ دغوښتنې پر بنسټ د خپلو افغاني ورونو ( خلقي او پرچمي مزدورانو ) د مرستې لپاره افغانستان ته ولېږلې، او له یو لنډې مودې وروسته به خپل یو څو ځواکونه له افغانستان څخه وباسو.
دا د روسانو له خوا د ۱۹۷۹ د دسمبر په ۲۷ زمونږ دهېواد د اشغال لپاره بهانه وه، هغه لنډه موده چې روسانو یې خبره کوله، لس کاله یې ونیول، ددې مودې په ترڅ کې زمونږ د مظلوم او کړېدلي ولس یو نیم ملیون انسانان شهیدان شول، پنځه ملیونه نورو د روسانو، پرچمیانو، خلقیانو او د ملګرو د سخت وحشت، انسان وژنې، او جنایتونو له وجې یې هجرت وکړ، زمونږ د خلکو په

زرهاوو کورونه وران شول، افغانستان د خپلواکۍ او اسلام د قربانیانو دغم په کور بدل شو.
نجیب، دغه پروتي موجود. د خاد د چوکۍ په نیولو سره ،لاس په کار شو، په لومړي قدم کې یې د یو نامشروع او انسان ضد، لاسپوڅي رژیم د بقا لپاره د روس د کې جي بي د مشاورینو په ګډون د یوې بشپړې جاسوسي ادارې پلان جوړ کړ. د خاد د جهنمي ادارې مامورین د یوکال په ترڅ کې له ۵۰۰ څخه زرهاوو کسانو ته ورسېدل. له ټولو مخکې یې ټول هغه لوچکان او پلید عناصر چې پېژندل یې، د خاد په اداره کې را ټول کړل. او د نظامي رتبو په ورکولو سره یې هغوی جاسوسۍ او انسان وژنې ته وهڅول. نجیب ددې لپاره چې د جاسوسي ادارې فعالیتونه یې تر خپلو سترګو لاندې په ښه توګه تر سره شي، خاد ته یې بدکاره ښځې جذب کړې. او داستخباراتو د تر لاسه کولو لپاره یې له هغوی نه استفاده کوله. نوموړي د خاد په وسیله د رستورانونو او د فساد د ترویج د کورنو په جوړولو لاس پورې کړ. چې په هغه کې به د خاد بدکاره ښځې د خپلو دندو په پر مخ بیولو بوختې وې. دغه د فساد ځالي د ( د شنه مارغه کلپ ) په نامه او د ( نمبر ۹ کلپ ) په نامه یادېدلي. نوموړي کلپونه په ۱۳۶۱ کال کې د سرښندونکو مجاهدینو د بم په نتیجه کې منفجر کړل شول.
په دې پېښه کې د امان الله په نامه یو ځوان د خاد د مزدورانو له خوا ونیول شو، نوموړی زما د پلار د دوست حاجي الله نظر د زوم ورور و، نجیب نوموړی اعدام کړ، او په دې توګه یې د حاجي الله نظر دوستانه اړیکې او خدمت له خپلې بېرحمۍ او خونخوارۍ نه قربان کړل. نجیب همدا رنګه په ټولو دولتي او غیر دولتي موسساتو او ځانګو کې مختلف افراد دخاد غړیتوب ته جذب کړل، او هغوی ته یې په لوړو چوکیو کې ځای ور کړ.
نجیب په بهر کې په ټولو افغاني سیاسي نماینده ګیو کې دخاد جاسوسان درسمي مامورینو په توګه ټاکلي وو. هغوی هم خاد ته جاسوسي کوله اوهم کې جي بي ته. په ځانګړي ډول په لویدیځو هېوادونو کې د خاد هغه ډاډمن غړي چې د کې جي بي شپږ میاشتني او یو کلن جاسوسي کورسونه به یې ویلي وو ټاکل کېدل.
احمد سرور په لندن کې د افغان سفارت مشاور چې د نجیب باجه کېږي، هم دهمدې کې جي بي له جاسوسانو څخه دی، او له لیلا سراج سره یې چې د حمیرا سراج کورنۍ له بدکارو نجونو څخه وه، واده کړی، چې د دیپلومات په توګه د جاسوسي دندو تر سره کولو په غرض لندن ته لېږل شوی و، نوموړی اوس په دهلي کې د کابل حکومت سفیر دی.
نوموړي د جاسوسي تربیې شپږ میاشتني کورسونه په مسکو کې وویل، د کورس له پای ته رسېدو وروسته د خاد او د کې جي بي د غړي په توګه د

ډيپلوماتيک ماموريت تر لاسه کړ. نوموړی په حبيبيه ښوونځي کې د تحصيل په دوره کې د ظاهر شاه د زوی محمد داود پښتونيار له هلکانو څخه و، چې زياتره وخت به يې هغه ته د عياشو او بې لارو نجونو دلالي کوله. نوموړی يو پرېوتی، نهايت نالايقه او بې استعداده انسان و، په هېڅ رشته کې تخصص نه لري، نوموړي د پادشاه دزوی ملاتړ غنيمت ګڼلی او د هغه په نوم يې يو ښوونځی پرانيست. نوموړی اوس د نجيب او کې جي بي په پناه کې دی. د جاسوسۍ بې شرمه دندې تر سره کوي. او خپل د غوړه مالۍ ژوند په مخ وړي.

د نوموړي مېرمن ليلی جيلاني، د حميرا سراج دوهمه بدکاره لور ده. چې د ټولې کورنۍ په څېر يې له اوږدې مخکنۍ فحشا او بدکارۍ څخه برخمنه ده. نوموړې هم په بشپړې نالايقۍ سره ښوونځی پای ته ورسولو. او د خپل ماما داکتر انس په مرسته چې د معارف وزير و د فرانسي له تعليمي بورس نه په استفادې سره پاريس ته لاړه. مګر د نالايقۍ له مخې ناکامه شوه. کله چې دفرانسې حکومت د نوموړې بورس قطع کړ، څو مياشتې د پاريس ښار په سرکونو د بدکاره ښځو په څېر درېدله. او په بدکارۍ او فحاشۍ به يې لاس پورې کولو. وروسته له هغه چې تور مخ او ناکامه بېرته کابل ته راغله، بيا يې د ډاکتر انس په سپارښت يوګوسلاويا ته تحصيلي بورس پيدا کړ او هلته لاړه. متاسفانه چې هلته يې هم خپلو تحصيلاتو ته ادامه ور نکړای شوه. بېر بيا کابل ته راغله. بالآخره يې له احمد سرور سره کوزده وشوه، له سرګردانۍ او دربدرۍ نه وژغورل شوه.

سرور څه وخت وروسته له ليلا څخه د جلاوالي تصميم ونيو. مګر نجيب منځګړيتوب وکړ. او پرې يې نښود چې دغه جلاوالی را منځ ته شي. کله چې نجيب په تهران کې سفير و، ليلی او سرور يې ځان ته ور وغوښتل، هغوی به يې ساتل. نوموړي سرور د سفارت سکرتر وټاکلو. کله چې نجيب له سفارت نه ګوښه کړای شو او يوګوسلاويا ته لاړو، سرور او ليلا په ايران کې پاتې شول. د شوروي د سره پوځ له خوا د افغانستان له اشغال، او د خاد درئيس په توګه د نجيب له راتګ نه وروسته نوموړي احمد سرور په تهران کې د افغانستان په سفارت کې د يو مامور په توګه وټاکلو. وروسته يې نوموړی د خاد غړی، او په ايران کې يې د کې جي بي په ارتباطي چينلونو کې منظم کړ. نوموړی بيا وروسته څو کاله په لندن کې د افغانستان سفارت شارژدافير و. چې د نجيب او ظاهرشاه د رابط دنده يې پر غاړه لرله. نوموړی نن هم په هند کې همغه دنده پر غاړه لري، د سرور يو ورور چې نجيب نومېږي، له لسو کلونو را په دې خوا په آلمان کې په پټو پوليسو کې و، او په هامبورګ کې د نجيب په ګټه

فعالیت کوي. په هر حال، په خاد کې دنجیب اساسي کار د کې جي بي د دیپلوماتانو او کمونیستو ځوانانو ځواکمنول وو. نوموړي د ځوانانو په سازمان کې مسلکي کمونیستان روزلي. په هغه وخت کې د نوموړي سازمان د غړیو شمېر دیرش زرو ته رسېدو. چې کم تر کمه پنځوس سلنه یې پښتانه او بلوڅان وو. چې په سر کې یې د کې جي بي فعال او ځوان جاسوس فرید مزدک کار کوي. او د خاد په جاسوسه اداره کې د زخیره شوي ځواک په توګه بنستیز رول لري.

ټول هغه ځوانان چې خاد ته جذبیږي، لومړی د ځوانانو د سازمان له خوا پیژندل کیږي، د سازمان له تضمین او د عضویت د پاڼې په پای کې دمزدک له تاییدي لاسلیک وروسته د خاد د غړي په توګه د وفادارۍ لوړه کوي. د خاد شیطاني ځواک، دنجیب او روسانو د زیاتې پاملرنې له وجې زمونږ په ټوله ځوربدلي ټولنه کې ریښې کوي.

د یوه شقاوت پالونکي، خاین او جنایتکار سازمان مشري هغه دشرم داغ دی چې نجیب نشي کولی له خپل تندي څخه یې پاک کړي.

**څلورم فصل**

**خاد او انسان وژونکی نجیب.**

د خاد جنایتکار او ظالم سازمان هغه وخت په فعالیت پیل وکړ کوم وخت چې د افغانستان مجاهد او مبارز ولس پراخه جهاد پیل کړی و. د افغانستان د مقاومت ځواکونه د شوروي د بې شرمانه تجاوز او د کابل دلاسپوڅي حکومت د استقرار پر ضد بنه خپله کړې وه. زمونږ پر هېواد د شوروي نبغ برغل د روسي کمونیزم له بلا څخه د خپلواکۍ د بېرته تر لاسه کولو لپاره د افغان ولس زړور جهاد ته تازه څپې ور په برخه کړې. د روسي ځناور په وړاندې دافغانستان د خلکو قوي مقاومت دنړۍ دټولو نظرونو او عامو افکارو پام ځان ته واړولو.

د ټولو خپلواکو ملتونو مادي او معنوي مرستې د افغان ولس د برحقې داعیې لپاره ورځ په ورځ زیاتېدلې. په داسې حال کې چې زمونږ ولس برخلیک ټاکونکې جګړې ته ادامه ور کوله، د شوروي د دهري او جنایتکار دولت مشاورین، له نجیب. دغه د شیطاني ځواک دوران ته نوي رسېدلي فرمانبردار سره د خاد د خونخوارۍ او انسان وژونکې موسسې په سازمانولو بوخت وو. نجیب د کې جي بي د مشاورینو په مرسته د خپلواکۍ غوښتونکو مجاهدینو د له منځه وړلو کرغېړن پلانونه جوړول. او د خاد د انسان وژونکو په واسطه یې د جرمونو په ستېج وړاندې کول. نجیب په چل او شیطانیت سره د مجاهدینو په منځ کې جاسوسان په دندو وګومارل. او د جاسوسۍ په واسطه د تر لاسه شویو

اطلاعاتو له مخې به يې د افغانستان د خلکو د شامل جهادي خوځښت په وړاندې د ظالم نظام د تحکيم لپاره کار کولو. نجيب به هر ځل چې د افغانستان د مجاهدينو په نيولو کې بريالی کېدو، د کي جي بي د ابليسي او انسان وژونکې دستګاه په وړاندې به يې خپل اعتماد او اعتبار زياتولو.
نجيب د خاد درياست پر مهال د ستالين او بيريا د ظلم او انسان وژنې لار خپله کړه. بيريا د ستالين په وخت کې د کي جي بي د جاسوسی د استخباراتي سازمان مشر و. نوموړی د شوروي د کمونيستي نظام د مخالفينو په وژلو او خونړيو اعدامولو کې په جلاد مشهور دی. کله چې ستالين په ۱۹۵۳ کې مړ شو، بيريا غوښتل د هغه ځای ناستی شي، مګر څه رنګه چې خروسچف د خپلو خاطراتو په کتاب کې چې په غرب کې چاپ شو وايي چې ده د هغه وخت له دفاع وزير سره د کريملين په دننه کې د بيريا پر خلاف دسيسه جوړه کړه، ا ود ستالين له مرګ نه څو ورځې وروسته يې بيريا  په مسکو کې د کي جي بي په زندان کې چې ( لوبيانکا ) نومېده اعدام کړ.
نجيب د خونخوار بيريا په څېر د ۹۰ زره بيګناه افغانانو د نيولو او وژلو حکمونه چې د خپلواک او اسلامي افغانستان  په خاطر يې د مقدس جهاد او مبارزې بيرغ پورته کړی وو، لاسليک کړي دي. دغه ټول کسان د خاد په دهشتګاوو کې په بيرحمی سره شکنجه شول. او دشکنجو او کړولو په مختلفو وسايلو او طريقو  اعترافونه ترې اخيستل کېدل. نجيب د بيريا په څېر له دغو شکنجو خوند اخيست. نوموړی بيا هم د بيريا په څېر ځان د لاسپوڅي او کمونيستي رژيم د ساتنې مسول ګڼلو. د اعترافاتو له اخيستلو وروسته به نجيب زندانيان وژل.
ددغه شکنجو عيني ګواه زه خپله يم. کله چې زه په کابل کې د صدارت په مانۍ کې د خاد په زندان کې په ۱۹۸۶ کې څلور مياشتې بندي وم. د مختلفو سياسي تنظيمونو له ګڼو زندانيانو سره مخ شوم. ما وليدل چې هغوی څه ډول شکنجه شوي وو. زياتره تحقيق او شکنجې به د شپې له خوا تر سره کېدې. د خاد مستنطقين چې دنجيب تربيه يې لېدلې وه ټول ظالم، مستبد او حيوان صفته وو. زندانيان به يې ټوله شپه بې خوبه کول. سخت به يې وهل او ټکول. په سخت ژمي کې به يې جامې ترې وايستې.  له تودخې پرته په يوه يخه خونه کې به يې دېته مجبورول چې همداسې لپ لغړ ولاړ وي. د شپې له سره تر سهاره به څلور پنځه پيره داران د دوی د څارنې لپاره تبديلېدل. تر څو پرېنږدي چې زندانيان ويده شي.

زنداني غريب د دا ډول غير انساني شكنجو له وجې آخر له پښو لوېدلو. او دېته به حاضرېدو چې په خپل ځان تورونه پورې كړي. د مستنطق امرونه ومني. له دا ډول شكنجو او كړاو نه د خلاصون لپاره ناحقه اعترافونو ته ځان ور كړي.
دا د كړولو او شكنجه كولو يوه عادي او معمولي بېلګه وه، كمونيستو خاديانو د افغانستان مجاهدينو ته داسې شكنجې ور كولې چې دهلتري نازيانو شكنجې د سړي هېرېږي. لكه په مقعد كې دجوشو اوبو پېچكاري كول. او د فانتا دبوتلونو ننويستل....... هغه څه چې د انسان عقل يې نه مني، نجيب او نورو انسان وژونكو خاديانو زمونږ دمجاهد ولس په مقابل كې تر سره كول.. له روحي كړاو نيولې تر وژلو او وينو تويولو پورې، د خلكو د قانوني او روا ملكيتونو، مالونو او جايدادونو له ضبط څخه نيولې پر كورنيو، عزتونو او ناموسونو باندې تر تجاوز پورې. له سياسي استبداد او اختناق نه نيولې د سياسي مخالفينو تر ترور او وركولو پورې. د وحشت د فضاد له ايجادولو نيولې زمونږ د مليونونو هېوادوالو تر فراري كولو پورې. ټول دغه جنايتونه د خاد اداري په وسيله د نجيب تر مشرۍ لاندې تر سره شوي. مګر نجيب په بشپړ وياړ سره خاد، دغه د شر زيږولو او ګناه پاللو دستګا ته پراختيا ور كوله.
نجيب له اجمل خټک سره چې په كابل كې د پاكستان د كمونيست ګوند رابط غړی و، ددايمي اړيكو په لرلو سره وكړای شو چې د خاد د رئيس او د كې جي بي د باورمند او مخلص خادم په توګه د كې جي بي جاسوسې ادارې دنفوذ ساحې ته په پاكستان، صوبه سرحد او د سرحدي قبايلو په منځ كې پراختيا ور كړي. نوموړي به د پاكستان د كمونيست ګوند ځوان غړي چې په قبايلي سيمو او صوبه سرحد كې يې فعاليت درلود د افغاني پاسپورت په ور كولو سره د محصلينو په توګه شوروي ته لېږل. هلته به د كې جي بي د مشاورينو تر دقيقه څارنه لاندې په تربيوي موسساتو كې تربيه كېدل. او بېرته به د جاسوسي چارو او د كې جي بي د خاينانه او كرغېړنو پلانونو دمخ ته بيولو په موخه د افغانستان له لارې پاكستان ته رالېږل كېدل.
په كال كې به د يو زر او پنځه سوه شاوخوا دا ډول افرادو له جملې څخه د خاد او كې جي بي تر څارنې لاندې شوروي ته استول كېدل.
نجيب د هغه پراخه پېژندنې له وجې چې د پاكستان د سياسي جرياناتو په اړه يې درلوده، په كم وخت كې يې وكولی شول چې دپاكستان د ټولو سوسياليستو او كمونيستو ګوندونو او ورڅخه جلا شويو ګروپونو د رهبرۍ تيت پرک هستې په افغانستان كې سره را ټولې كړي. او په خپل منځګړيتوب سره د هغوی ذات البيني اختلافات حل كړي، نوموړي د پاكستان د كمونيست ګوند د عمومي منشي افراسياب خټک د ميلمه پالنې او همېشنه توب په پايله كې وكړای شول

چې د نوموړي هېواد د کمونیست ګوند د ټولو غړیو ترمنځ، د خلق دیموکراتیک ګوند درهبرۍ پلاوو ترمنځ، او دشوروي چارواکو په ځانګړي ډول د کي جي بي سازمان او د هغه د رئېس یوري اندروپوف په وړاندې ښه اعتبار او ارزښت تر لاسه کړي .
کله چې یوري اندروپوف د کي جي بي رئیس و نجیب ته یې شخصا مسکو ته بلنه ور کړه، او د هغه په سینه یې د نوموړي د هغه مخلصانه خدمتونو له کبله چې د کي جي بي سازمان د کرغېړنو او پلېتو موخو لپاره یې تر سره کړي وو طلایي مېډال ولګولو. هغه مېډال چې د نجیب جنایتونه او هېواد پلورنه یې ستایله. نجیب چې کله له مسکو نه را وګرځېد، په نوره زیاته بېشرمۍ سره یې په کارونو پیل وکړ، زمونږ په هېواد کې او زمونږ د مسلمان و لس پر ضد د خاد د ظالم او آبرو بایللي سازمان د چارو په مخ ته وړلو او ښه تنظیمولو کې له زیات صلاحیت سره لاس په کار شو.
روسانو او د کي جي بي جنایت پېشه سازمان د خاد د دسیسه جوړونکي ماشین په مرسته او ملګرۍ د افغانستان دخلکو پر ضد په یوه بله دسیسه لاس پورې کړ. روسانو، په نولسمه پېړۍ کې په چین کې د انګریزي استعمار پر ضد د خلکو د خپلواکۍ غوښتونکي نهضت د له منځه وړلو لپاره د انګلیس له تکتیکونو څخه په استفادې سره د تریاکو په ترویجولو لاس پورې کړ. په افغانستان کې د الکولو او شرابخورۍ د ترویج اوعامولو لپاره ډېر زر لاس په کار شول.
روسانو د نجیب په مرسته او د هغه د ماشین یعنی خاد له لارې هڅې وکړې چې دغه بربادوونکی آفت دافغانستان په اسلامي ټولنه کې تیت کړي. تر څو هم د اسلام دین زمونږ په هېواد کې کمزوری شي، او هم د ولسپالنې اوهېواد پالنې احساس. تر څو په پایله کې د شوروي امپریالیزم په وړاندې مقاومت کمزوری شي. نجیب د یوه شرابي او په شرابخورۍ کې د مسابقه کوونکي په صفت له دې کار سره ځانګړې مینه لرله. شوروي د بې بدلې مرستې په بڼه یو نیم ملیون بوتله شراب نیغ د کابل دولت ته په افغانستان کې د شرابو د ترویج په موخه ور کړل. نجیب د خاد د بدنام سازمان د رئیس په توګه د افغان کارت له لارې ددغه مشروباتو د خرڅلاو څارنه کوله، او د روسي مشاورینو د توصیې پر اساس یې دهغه ډېرې تعداد پاکستان ته صادرول .
نجیب هغه حرامي پیسې چې د شرابو او روسي ودکا د پلورلو له لارې به یې تر لاسه کولې، زمونږ دملت د مادي او معنوي هستیو د تخریب په موخه د خاد په شبکو کې لګولې. نجیب چې خپله څه د خاد دریاست پر مهال او څه له هغه مخکې د ټولنیز فساد اصلي رواجوونکی و، کله چې د ۱۹۸۶ کال د نومبر په

مياشت کې د روسانو له لوري د ببرک کارمل پر ځای وټاکل شو، د ملي مصالحې د عالي کميسيون د استازو په يوه کنفرانس کې يې په خورا بې شرمۍ سره چې دده خوی دی، د اخلاقي فساد، شرابخورۍ اونورو بدو اعمالو په اړه چې د ټولنې اخلاقي بنسټ ورانوي خبرې وکړې، او پر هغه يې نيوکه وکړه. ځومره د خندا خبره ده. چې د نجيب په څېر يو کس د اخلاقو په اړه خبرې کوي.. نجيب هغه ځوک دی چې په خپله کورنۍ کې يې د بداخلاقۍ او رذالت لويه فتنه پر مخ وړله. دی څه رنګه کولی شي چې د ټولنيزو اخلاقي بنسټونو او اسلام په اړه خبرې وکړي. آيا هېر کړي يې دي چې مېرمن يې فتانه ځوک ده؟ نجيب به چې هر ځومره په خاد، او وروسته له هغه، د لاسپوڅي حکومت د تش په نامه ولسمشر په توګه په خپلو مرداريو کې مخ پر وړاندې تلو، په همغه کچه به يې مېرمنې بدکاريو ته زياته مخه کوله. کله چې نجيب د خپلواکۍ او مجاهدينو پر ضد او په افغانستان کې د شوروي د ګټو د خونديتوب لپاره دعملياتو د نقشې په طرح کولو بوخت و، ښځه يې له اشرف سره چې په ( الن دولن مشهور و ) او له نورو کسانو سره د اسحاق توخي په کور کې چې په خاد کې د نجيب د لومړۍ درجې جنايتونو معاون و، د هغه د مېرمنې ليلى په واسطه چې د فتانې راز داره او خدمتګاره وه، خلوت کولو، او په بشپړه توګه به د ټولو معيارونو او اخلاقي بنسټونو پر خلاف کړنو مرتکبه کېدله.

نجيب چې د شرافت، حيثيت او اخلاقي اعتبار په اړه خبرې کوي د خپل کشر ورور احمدزي له هغو بې ناموسيو څخه چې مرتکب شوی يې دی. ښه خبر دی. احمدزي د مير اکبر خيبر معصومې لورته دوکه ور کړه. د هغې کيسه داسې ده: مير اکبر له پيله له نجيب سره ښې اړيکې لرلې، خو کله چې نجيب له فتانې ساقي سره واده وکړ، خيبر پر نجيب سختې نيوکې وکړې، او له ځانه يې ورټلو. نجيب د خپلو فجايعو د پټولو لپاره د ببرک کارمل تر څنګ چې د خيبر رقيب و، ودرېد. نجيب د خيبر د مرګ لپاره له کارمل او کې جي بي سره په ګډه د هغه د ترور پلان جوړ کړ. او له منځه يې يووړ. په کابل کې د روسيې سفارت سکرتر اوبلوف د خيبر د وژلو پر مهال د وژل کېدو له ځای سره نېږدې دوه ځله ليدل شوی دی.

مګر له دې سره سره د خيبر وژلو د نجيب د غچ اور مړ نشوای کړی. د خيبر د کورنۍ پر ضد د نجيب له کينې، حسد او بغض څخه ډک دماغ ځوښېدلو. نوموړی د هغه په لور پسې راووت. پلوشه د خيبر ښکلې، بااستعداده او معصومه لور يې چې يوازې شپاړس کاله عمر يې درلود، دتحصيلاتو لپاره مسکو ته ولېږله. هلته د نوموړې د ښه ذکاوت او لوړې وړتيا له وجې ځو افغاني ځوانانو له هغې سره د واده کولو هيله لرله، مګر

احمدزي لکه ليوه د دغه نجلۍ په ژوند لوبې کولې. کله چې نوموړی د دوبې په رخصتيو کې کابل ته راغی، له نجيب سره يې مشوره وکړه چې غواړي د خيبر له لور سره واده وکړي.
ددې خبر په اورېدو سره د نجيب سترګې رډې رډې راووتې. په داسې حال کې چې د سخت قهر او غوسې له وجې لړزېدو: ورور ته يې وويل: ( ته دومره پست شوې چې غواړې د خيبر له لور سره واد ه وکړې؟ پوهېږې. آينده دې خرابيږي. مونږ بايد له دې کورنۍ څخه غچ واخلو ) د احمدزي سترګې د نجيب ځواک ړندې کړې. نوموړي خپل ځان پست توب ته ور کړ، او د خيبر له لور سره له واده کولو منصرف شو. د خيبر مېرمن چې يوه عاجزه او بېچاره ښځه وه، نجيب او د نجيب ظالمې مورته راغله، عذر يې ورته وکړ چې د لور حيثيت يې دې نه داغداره کوي. مګر دغو ظالمانو دهغې چېغو ته غوږ ونه نيو. د خيبر لور خپل اعصاب له لاسه ور کړل، له تحصيل نه پاتې شوه. او مور يې هم د غم له لاسه روح وسپارله. نجلۍ نن ورځ ليونۍ شوې ده، مګر احمدزی چې د ديرشو کلونو په عمر به وي، لوړ قد، نازک اندام، تور بريتونه او ويښتان، سپين پوست او ښکلې پزه لري خپل عيش ته ادامه ور کوي. د مير اکبر مېرمن د سليمان لايق خور وه، او سليمان لايق د سر په سترګو وليدل چې نجيب او احمدزي څه ډول د هغه د معصومې او يتيمې خورځې په ژوند لوبې وکړې. او نجيب څه ډول د خپل حزبي ملګري، رهبر او د خپلې فلسفې د استاذ د کورنۍ د تباهۍ او بربادۍ سبب وګرځېد. او د هغه په حق کې يې يو کوچنی ترحم هم ونه کړ .
لايق د خپل مسخه شوي وجدان له مخې چوپتيا غوره کړه. خپل حزبي دريځ ته يې لوړوالی ور وبښلو. دنجيب تر څنګ ودرېد. خو نجيب بيا هم يو نوی مکر په کار واچولو. نوموړي د خپلو جنايتونو د پټولو لپاره د خيبر د مېرمنې جنازه په هديره کې زما د پلار تر څنګ ښخه کړه. تر څو ثابته کړي چې د خيبر او کورنۍ په وړاندې يې کوم خيانت نه دی کړی. د نجيب دغه سياست د نوموړي له هغه وضعيت سره ورته والی لري چې نن ورځ دخپل کمونيستي وجدان د پټولو لپاره د تلويزيون د کامرو په وړاندې د خلکو د لا تېر ايستلو لپاره په بشپړه پستۍ او چالاکۍ سره د قرآن کريم مبارک آيتونه او نبوي احاديث وايي .
نجيب له خپل هر عمل څخه سياسي ګټه پورته کوي، د خيبر د لور په مقابل کې نجيب له خپل غير انساني عمل څخه دوه موخې درلودې: يوه له خيبر نه غچ اخيستل. ځکه چې خيبر به همېشه د هغه د ښځې له فاسدو اخلاقو، او خپله د نجيب له شرمېدلو سوابقو څخه خبرې کولې. دوهمه دا چې نجيب هېڅکله نه غوښتل په کورنۍ کې يې دې څوک ښايسته، تحصيل يافته، هوښياره او

باشخصيته ښځه ولري، ځکه چې خپله له دې لوري له سخت کمبود سره مخ و، اوتل به ځورېدلو. احمدزي څه ډول کولی شوای داسې ښځه وکړي چې دنجيب عقدې زياتې کړې .
احمدزي بيا د نجيب په ملاتړ او تشويق د نسرين په نامه له يوې بلې نجلۍ سره عشقبازي پيل کړه. نوموړې غريبه چې له احمدزي نه د څو مياشتو حامله وه، خوشې يې کړه. نوموړې ته د جنين د سقط له وجې سخته خونريزي پيدا شوه. تر دې چې مجبورا يې اضافي وينه ورکړه، له دې سره يې يو په يو د وينې سپين کرويات زيات شول. او ناروغه شوه. له تحصيل نه پاتې شوه. په دې توګه د احمدزي د رذيلانه هوسبازيو قرباني شوه.
نجيب د احمدزي له دې ټولو بد اخلاقيو څخه خبر و. احمدزي د خپل مشر ورور د قدرت تر سيوري لاندې اخلاقي مرداريو ته ادامه ور کوله. نجيب نه يوازې دا چې د نوموړي مخه يې نه نيوله، بلکې تشويقولو يې. يو کشر ورور به له خپل مشر ورور نه چې رذيل وي او دی رذالت ته تشويقوي څه زده کړي؟ احمدزي ډېرې نجونې يوه په بله پسې د خپلو شهوتبازيو ښکار کولې. له نسرين نه وروسته يې له يوې بلې نجلۍ سره چې ناجيه نومېده همدغه ډول پليت توب پيل کړ. مګر هغه بيا له خپلې کورنۍ سره له افغانستان څخه وتښتېده. خو احمدزي بيا هم د نجيب د تشويق او ملاتړ په مټ له يوې بلې نجلۍ سره چې توره ماري نومېده نامشروع اړيکې ټينګې کړې .
نجيب به له واده کولو مخکې د ښو، پاکو او هوښيارو نجونو په اړه خبرې کولې. نجابت او شرافت يې د ښځې لپاره اړين بلل. نوموړي په دې اړه دومره ټينګار کولو چې آن وړه خور مې ( کوکۍ ) يې له ښوونځي نه وايسته. تر څو د ښوونځي په چاپيرياﻝ کې يې پښه ښويه نه شي... خو له فتانې سره له واده کولو وروسته چې يوه بدکاره. شرابۍ، قمار بازه. او له يوې بدنامې کورنۍ څخه وه. نجابت او شرافت نجيب ته مطرح نه وو. نوموړی د هغه جزايي شوي کس په څېر و چې غوښتل يې د کورنۍ ټول غړي په همدې غم اخته شي. تر څو له کورنۍ څخه يې څوک ده ته د انتقاد ګوته و نه نيسي. نجيب پوهېدلو چې فتانه يې په وړو ورونو څومره اغېز کولی شي. له همدې کبله نوموړي احمدزی، روشان چې واړه ورونه يې وو، له کوکۍ سره چې کوچنۍ خور يې وه د فتانې ساقي تر روزنې لاندې کړل.
دا چې احمدزی يو نازک او خوش رنګه هلک و، فتانې به همېشه له نوموړي څخه. يعني د خپل خاوند له ورور څخه جنسي استفاده کوله.. دغه نامحرم اخلاق چې په هېڅ بشري ټولنه کې د منلو وړ نه دي، زمونږ د کورنۍ په نورو غړيو يې داسې منفي اغېز وکړ. چې د جيلاني کورنۍ، دغه د پکتيا بې

سواده، نوې رسېدلي کورنۍ ( د نجیب کورنۍ ) د اخلاقي انحرافاتو تر سرحده و ښویوله.
 په کوکۍ باندې د فتاني اغېز ډېره د شرم خبره ده. فتاني ساقي کوکۍ بې عفتۍ او اخلاقۍ فساد ته سوق کړه. تر دې چې نړۍ ته د نامشروع ( غورځنګ ) د راوړلو لامل و ګرځېده. نجیب ښه پوهېدو چې ( غورځنګ ) د چا زوی دی. مګر ددې لپاره چې خبره رسوایۍ ته ونه رسېږي. نوموړې یې په بېړه نورانشاه سنګر ته واده کړه. او د کوکۍ دغه بې غیرته او بې ننګه خاوند ته یې د جنرالۍ رتبه ورکړه. او د هغه د وضعیت د تلافۍ لپاره یې نوموړی د یوه کال لپاره شوروي ته د خاد او کي جي بي په برخه کې د لوړو نظامي کورسونو د ویلو په نامه واستولو. له راتګ نه وروسته یې د لا زیاتو اختیاراتو په ور کولو سره نوموړی د خاد د ۱۲ ریاست د رئیس په توګه چې د جمهوري مانۍ د ګارد د فرقې څارنه یې کوله وګومارلو. نوموړی نه آبرو لري او نه شهامت. خو دا چې غلام مشربه او لنډغر دی نجیب غواړي نوموړی په خپل څنګ کې وساتي. مېرمن یې کوکۍ له سکینه زیار سره یو ځای په شپو شپو د فتاني په پله په بدکاریو لاس پورې کوي. او ویاړي هم. مهمه دا ده چې نجیب د کمونیزم له مطالعې سره یو ځای کمونیستي ملحد اخلاق زده کړل. دا چې له کوچینوالي لاابالي و، روسي اخلاق یې په زړه ډېر ښه پرېوتل.. کمونیستي او روسي اخلاق له اسلامي، افغاني او ملي معیارونو سره ډېر توپیر لري. نجیب د روس له کمونیزم سره، او د روس کمونیزم له نجیب سره د همدې بنسټ له مخې زر بې طلاقه واده وکړ. ځکه خبیث له خبیث سره ښه لګېږي. که دا خبره نه وای. کوم افغان خاوند به دا منلې وای چې مېرمن یې دې له یوه روسي مشاور نه لور ولري. کوم ولسمشر یا کوم رهبر تر دې اندازې پریوتی دی چې ښځه یې له یوه روسي مشاور سره همبستره شي. او له هغه نه د اولاد څښتنه شي. او دی هغه په ویاړ سره ومني... د ملي مصالحې ښاغلی رهبر نجیب. نشي کولی چې خپله ښځه او خپله کورنۍ په سمه توګه رهبري او تنظیم کړي. نو څه رنګه به وکولی شي چې د یو ملت رهبري په غاړه واخلي. نجیب نه یوازې خپل ناپوهه او فرصت طلبه خور او ورور د نه جبرانېدونکې پستۍ تر سرحده ورسول. او پلار یې سوء استفادې ته کش کړ، بلکې د اکا زوی یې نور الله، او دعمه زوی یې هاشم پکتیانی هم تشویق کړل تر څو له داسې ښځو سره نکاح وکړي چې د فتاني هم لباسه وي .
د اکا زوی مې نور الله د هرات ننداري څخه یوه نڅاګره چې ( افتخار ) نومېده خپله مېرمن کړه. نوموړې له خپلې مشرې خور ( عصمت ) سره په هرات ښار کې د هرات ننداري په صحنو کې دنڅاګرۍ همېشنۍ دنده لرله. او د هرات

د مشهورو بدکارو ښځو له ډلې څخه وه. عصمت چې بدرنګه او نارينه ډوله وه. د انقلابي شورا د رئيس کارمل د معاون جنرال ګل آغا معشوقه وه. نجيب دغه بې سواده ښځه د وړکتونونو د رياست معاونه وټاکله. نوموړې د وړکتون د ماشومانو له شېدو، جامو او خوراکي موادو څخه ډېرې سوء استفادې وکړې. هغه به يې د پلورلو لپاره بازار ته وړل. افتخار له خپلې بدرنګۍ سره د فتانې د نوکرۍ او رازدارۍ په توګه کار کولو. فتانې به د دا ډول بد کاره ښځو له شتون څخه ګټه پورته کوله. نوموړې نه غوښتل چې نجيب په يوه علمي، فرهنګي او سياسي چاپيريال کې له پوهو او با شخصيته ښځو سره اړيکې ولري. تر څو د ددې کمياني تر دې زياتې را څرګندې نه شي. فتانې د ځان شاوخوا او د نجيب د کورنۍ شاوخوا داسې بدرنګه او بې سويې ښځې يوازې د همدې موخې لپاره را ټولې کړې وې. نجيب په فساد او بدکارۍ کې د خپلې کورنۍ لپاره يو ماډل. يوه بېلګه ګرځېدلی و. چې ځوانانو به د هغه پيروي کوله.
د عمه زوی مې هاشم پکتياني له نجيب سره د نږدې اړيکو پر بنسټ چې له ماشومتوبه يې د بداخلاقيو شريک و، د واده کولو پر مهال د بيزو په څېر د نجيب تقليد وکړ. نوموړي خپله لومړنۍ مېرمن چې ښه پاک لمنه ښځه او داکا له کورنۍ څخه يې وه، پرېښوده، دوهمه ښځه يې د بدکاره او بېکاره سابقې لرونکو ښځو له ډلې څخه چې په راډيو افغانستان کې يې کار کولو په نکاح کړه. په دې توګه نوموړي نجيب ته ثابته کړه چې په بې غيرتۍ او ټيټ همېتۍ کې له ده څخه څه کم نه دی. نجيب نه يوازې دا چې زمونږ د کورنۍ سړيو ته بدکاره ښځې را مخکې کولې. بلکې آن خپلو باډيګاردانو ته يې سپارښتنه کوله چې له دا ډول ښځو سره واده وکړي. مسعوده جلال د ډاکتر کمال سيد طلاقه شوې مېرمن، چې د فتانې د اکا لور کېده، او فتانه به ډېری وخت د هغې په کور کې له فاسدو نارينه وو لکه مجيد، افغان، مجيد منصوري، عبد الله اعتمادي، د ملکيار د کورنۍ ځوانانو او د آذر خياط زوی عبد الله سره بدکارۍ تر سره کولې. نجيب خپل باډي ګارد ( جېسر ) ته له نوموړې سره د واده کولو وظيفه سپارلې وه، ځکه چې له نوموړې سره واده ته څوک نه حاضرېدل. جېسر له هزاره ګانو څخه دی، دلاس په نښه کې فوق العاده مهارت لري.
نجيب به په دې اړه داسې ويل: ( زه د مسعودې په وړاندې هميشه د مسوليت احساس کوم. بايد له هر لوري حتی له جنسي اړخه هم له نوموړې سره مرسته وکړم.. ) مسعودې چې کله خاوند درلود له خيال سندر غاړي سره يې جنسي اړيکې لرلې. له همدې کبله کمال سيد نوموړې طلاقه کړه.

نوموړې ډېره بده ښځه ده، اوس نجیب د عامې روغتیا په وزارت کې پرته له کوم استحقاقه د بهرنیو اړیکو رئیسه ټاکلې ده. دا خپله په ډاګه کوي چې نجیب تر کومې کچې خپلوي پال و.
دغه ښاغلي انقلابي، دغه د ملي پخولاینې رهبر، او دغه مفسد فی الارض د غوایي له ګډوډیو مخکې په خپلو بیانیو کې د خپلوۍ پاللو میلانونه محکومول. خو له کومې ورځې چې واک ته رسېدلی خپلوي پالل یې خپل لوړ برید ته رسولي دي. نوموړي دولتي پوستونه د حمیرا سراج او خپلې کورنۍ د بې استعداده غړیو تر منځ ویشلي دي. نجیب د خپلې عیاشۍ او ساعت تېرۍ لپاره یو کور جوړ کړی و، چې د سرحدي قبایلو د کمیسیون په نامه یادېده. کله به چې له انسان وژنې، د خاد د توطیو او دسیسو له چارو فارغ شو دلته دغه کور ته به د عیش او عشرت، رذالتونو او بدکاریو لپاره راتللو. زه او مېرمن مې له خپلو دوو ماشومانو سره په ۱۳۶۲ کال کې د یوې توطیې په ترځ کې چې نجیب جوړه کړې وه، په دغه کور کې چې د خاد مربوط و، او په وزیر اکبرخان کې د ( ګولدن لوتس ) رستوران مخې ته یې موقعیت درلود، نظر بند شوو. او تر څارنې لاندې وو .
دنوموړي له اسرارو ډک کور مستخدمین او پیره داران زمونږ له لیدو نه په تعجب کې وو. پوښتنه یې وکړه چې که مونږ له نجیب سره خپلوي درلودی نو له دې مخکې یې ولې مونږ نه یو لیدلي او نه مو پېژنې؟ ولې مونږ د هغوی دشپې په محافلو او ناستو کې په دې کور کې حضور نه دی درلودلی؟ ولې زما او دنجیب تر منځ دومره لوی توپیر دی؟
دا کور مونږ ته هم په زړه پورې و، له بې کارۍ نه مې ددې کور په پلټلو او تحقیق پیل وکړ. او په رازونو یې پوه شوم. د نوموړي کور مستخدمین ساده او بیچاره خلک وو، چې د مجبوریت له وجې دې ځای ته را کاږل شوي وو. نوموړو له بې فرهنګه قبایلیانو او د خاد له جنایت پېشه مامورینو څخه ډېر شکایتونه لرل. له دې مستخدمینو څخه یو سپین ږیری و، چې غمجنه اونیولې څېره یې درلوده. هر وخت به مې چې هغه لیدو فکر مې کولو چې څه غم لري، خو په زړه کې یې پټوي او نه غواړي په اړه یې خبرې وکړي .
تر دې چې آخر یې یوه ورځ د زړه غوټه پرانیستله. په داسې حال کې چې له سترګو یې اوښکې روانې وې ویې ویل: زوی مې د کارمل حکومت اردو ته بوتلو. او یوې جبهې ته یې ولېږلو. میاشتې وشوې چې له مړه او ژوندي یې خبر نه لرم. له هر چا چې پوښتنه کوم ځواب نه راکوي. ما نوموړي ته ډاډګېرنه ور کړه او له ما سره آشنا شو. نوموړي د یاد کور په اړه عجیبې کیسې کولې..

نومورې کور ډېرې خونې لرلې، د لامبو حوض. سونا حمام. د سپورت له میدان سره ښکلي چمنونه. د تعمیر په دننه په منځنۍ برخه کې، یو مربع شکله دهلیز و، چې ګڼې خونې ترې را تاو وې. نومورې خونې په موري قالینو فرش وې، په هره خونه کې دکور باارزښته سامانونه ایښي وو. د دوه خونو وروته به همېشه قلپ وو، هېچا د هغو د پرانیستلو اجازه نه لرله، کلي ګاني یې له یوه ځوان خادیست سره وي چې صلاح الدین نومېدو. خو د کور مشر خادم د بابا عبد الرحمن په نامه یو بوډا و، چې له ما سره یې آشنایي شوه. یوه ورځ مې هڅه وکړه چې دغه خونې ووینم. دا چې د خونو د ننه پردې یو څه یوې اوبلې خوا ته شوې وې، وتوانېدم چې د کړکیو له شا څخه خونې ووینم. په خونه کې یو دوه نفري د خوب کټ. د زنانه د آرایش له میز سره، چې رنګارنګ عطرونه او د آرایش سامان پرې ایښي وو تر سترګو مې شول. په تعجب کې شوم.. چې دا ټول سامان دلته د چا او څه لپاره؟ له صلاح الدین څخه مې دموضوع په اړه وپوښتل. هغه ویل دا خونه د خاد درئیس صاحب ( نجیب ) ده، او امر یې کړی چې ور یې باید هېچا ته خلاص نه شي. هغه بله خونه د ده دمعاون ښاغلي توخي ده. کله کله نورو خونو ته قبایلي میلمانه راځي. ډاکتر نجیب او سلیمان لایق دلته راځي، او هغوی ته د نوټونو او کلدارو بنډلونه ور کوي. ما پوښتنه وکړه: د څه لپاره پیسې ور کوي؟ سپین ږیري چې کافي سواد یې نه درلود، ځواب را کړ: ددې لپاره چې طرفداري یې وکړي، نومورې وویل: ( که ځانګړي قبایلي میلمانه نه وي، ډاکتر صاحب نجیب له حبیبه جانې سره د خصوصي کار لپاره دلته راځي. البته یوه یوه بله ښځه توخی هم راولي، خو هېڅ یوه یې د حبیبه جانې په څېر ښکلې نه ده. په ځینو ورځو کې چې کله دا کور خالي وي، د کوهستاني کورنۍ له خپلو مېرمنو سره دلته راځي، پسونه حلالوي. کبابوي یې او شراب څښي. وروسته ټول نارینه او ښځینه له ډاکتر صاحب نجیب سره په سونا حمام کې لپ لغړ لامبي... آخره زمانه شوه(... دلته سپین ږیري، غوړونه ونیول او توبه یې و ایسته. بیا په ځمکه پرېووت. بېرته را پورته شو. او ویې ویل: لوڅې ښځې، او لوڅ سړي... یو ځای... په یوه حمام کې... الله مو دې وساتي...) سپین ږیری به د حبیبې په اړه ډېر ږغېدو، د هغې نکل مې اورېدلی و، خو دا ځل حقیقت ته ورسېد. ... نور بیا

لیکوال: صدیق الله راهي د ډاکتر نجیب ورور.

ژباړه: عبد الخبیر جاهد

